# شعر پېژندنه

د اکاډمیسین کاندید محمد صدیق روهي



# شعر پېژندنه

(د مقالو مجموعه)



لیکوال

کاندید اکادمیسین محمّد صدیق روهي

۱۳۷۴ هـ، ش

د دې کتاب د چاپ لګښتونه ښاغلي
بسمل پسرلي برابر کړيدي .




## دکتاب پېژندنه:


- دکتاب نوم : شعر پېژندنه
- ليکوال : کانديد اکاډميسين محمد صديق روهي
- خپروونکی : د ناهيد کتاب چاپولو مؤسسه
- دچاپ کال : ۱۹۹۶ع / ۱۳۷٤ هـ ش
- خطاط : س . م . د هاشمي
- د پښتي انځور : حامد سحر
- دچاپځای : ملت پرنټرز - لاهور

# یادښت

په تېرو څو کمو دعو لسيزو کې د افغانستان د معاصر پښتو شعر په جريان شاعرانو خپلې ونډې خېزي کړي او د سوسياليستي ريالېزم پلوي کره کتونکيو په خپلو ليکنو او کره کتنو کې په شعر کې شعاري تمايلات هڅوا ورزيات کول او د شعر هنري او ښکلا ييز ارزښتونه يې، چې شعر ته ژوند بخښي، بې ګټې او هسې د ګل و بلبل خبرې ګڼلې.

د مسلط رژيم فکري بستونو ته په پاملرنه شاعرانو او دې تمايل د ملاتړ يو کره کتونکيو نظريو ښه چپ ملاود، د هېواد مطبوعات ټول له دغه ډول ليکنو او شعارونو ډک وو.

د شپېتمو کلونو په اواخرو کې زموږ د هېواد نامتو اديب او کانديد اکاډيميسين محمد صديق روهي په شعر او د شعر په کره کتنه کې د دغو تمايلاتو په وړاندې ځينې داسې لارښودې مقالې وليکلې چې د شعر اصلي ماهيت ته په پاملرنه يې ځينې جالب نکات درلودل. د دې مقالو نظريو په ځوانو شاعرانو او کره کتونکيو کې ډېر لوستونکي او علاقمندان پيدا کړل.

له مقالو سره د ځوانانو دې مينې زه وهڅولم چې دا مقالې ټولې شي او په يوه مجموعه کې چاپ شي. همدغه وو چې په ۱۳۷۰ هش کال دا مقالې د کانديد اکاډيميسين روهي تر نظر لاندې راټولې شوې دده يوه لنډه مقدمه هم پرې وليکله او همدغه کال په دومه نيمايي کې د پوهنوال برياليباجوړي په څانګړې پاملرنه، چې په هغه وخت کې د ليکوالو د انجمن د ادبي څېړنو منشي و، د ليکوالو د انجمن له خوا چاپ ته وسپارل شوې، خو څنګه چې نږدې وه چې چاپ شي په کابل کې پخوانی رژيم سقوط شو، هر څه په چور او تالان ستول، دا مجموعه هم ورکه شوه.

په پېښور کې هم تل دا مجموعه په زړه را ګرځېده او دا مې هيله وه چې که بېرته يې په لاس راولم او بيا چاپ يې ته بريالي شم. په دې لړ کې مې خپل کوښښ جاري وساته. د دوستانو په مرسته ددې لړۍ څو مقالې چې په شمشاد، کابل او ځينو نورو مجلو کې چاپ وې، هغه تر لاسه شوې، خو د اخبارونو مقالې مې پيدا نه کړې.

په وروستيو کلونو کې کانديد اکاډيميسين روهي دوې درې نورې کوچنۍ مقالې هم وليکلې، چې په وفا کې چاپ شوي وې، سلاسي مې دغه موجودې مقالې په دې مجموعه کې راغونډې او هڅه مې پرې [illegible] کښېښود، دا ځکه چې ددې مجموعې د يوې مقالې عنوان همدا دی او له بلې خوا ټولې مقالې د شعر او د شعر د ماهيت په باب دي.

کله چې مجموعه راټوله شوه او ښاغلي سيد محي الدين هاشمي خطاطي کړه، لومړی د مخه مې يې لپاره ښاغلي استاد کانديد اکاډيميسين پوهاند ډاکتور محمد رحيم الهام ته وسپارله، دوی په ډېره مينه يوه ممتع مقدمه پرې وليکله چې [illegible] سر کې تاسې ته وړاندې کېږي.

دلته بايد دا يادونه وکړم چې ما ته د ګران ځوان فرهنګي ايمل پسرلي زما د يوې رسالې (د پښتو [illegible] تصنيف او تقلوني ربړي) د چاپ لپاره د ۱۹۹۴ ع کال په اکتوبر کې څه پيسې را ولېږلې وې. ما [illegible] ددې رسالې چاپ د ځوانانو لپاره غوره وګڼه، نو ځکه د خپلې رسالې په پيسو دا رساله چاپ کړه.

زه په پای کې له استاد الهام، چې زما په غوښتنه يې ډېره ګرانبيه مقدمه پر مجموعه وليکله او هم له ښاغلي سيد محي الدين هاشمي، چې دا مجموعه يې په مينه خطاطي کړه، د زړه له کومي مننه کوم او ګرانو لوستونکو ته دغه [illegible] لوستو ته رابولم.

په درناوي

سرمحقق زلمی هېوادمل

۱۳۷۴ هش

# فهرست





سريزه :

# دشعر د ماهيت مسأله

د نړۍ په فرهنګي نظام کې ادبي څېړنې، په تېره بيا د شعر پر ماهيت باندې فلسفي تأملات، خورا اوږده سابقه لري. دا خبره اوس جوته شوې ده چې شعر د نورو هنرونو، لکه موسيقي، مجسمه جوړول، نڅا، معمارۍ، نقاشۍ او سينما، په څنګ کې يو هنر دی. د هرې پديدې علمي څېړنه لږ ترلږه دوو عمده او بنسټيزو عناصرو ته اړتيا لري چې يو يې د هغې پديدې د ماهيت په باب فلسفي نظريه او بل يې د څېړنې ميتود دی. په دې دوو عناصرو کې نظريه اصلي او ميتود د فرعي توکونه دي؛ يعنې ترڅو پورې چې نظريه تثبيت نه شي ميتود رامنځ ته کېدای نه شي. خو له بده مرغه د يوې پديدې د ماهيت په باب نظريه رامنځ ته کول هم ځانته ميتود لري. که د نظريې جوړولو له تفصيلي بيان څخه تېر شو او په مجمله توګه يې وڅېړو، نو کېدای شي ووايو چې نظريه يا په خالص ذهني ميتود يا دا چې په بېخي عيني ميتود رامنځ ته کېږي. په ذهني ميتو-

کې له منطقي قیاس او په عیني میتود کې له استقراء څخه کار اخیستل کیږي.
که نظریه پر ذهني (قیاسي) میتود بناء شوې وي سوچه ایدیالیستي بڼه
لري او که پر عیني (استقرایي) میتود تکیه ولري، نو پوره میکانیستي
بڼه غوره کوي. د یوې پدیدې د ماهیت په باب پر دې دواړو نظریو
باندې اعتراضونه شوي دي او یو بل داسې میتود تجویز شوی دی
چې قیاس او استقراء، ذهنیت او عینیت دواړه په کې په ترکیبي او امتزاجي
دول کارول کیږي. زه دلته د دې قصد نه لرم چې د تیوري (نظریې) د بنا
کولو ټول ضوابط او شرایط وڅېړم؛ خو دومره وایم چې کله نظریه بنا شي،
نو باید چې افاده شي. هر علمي نظریه د خپل موضوع له ماهیت سره ځانته
خاص مقولې لري چې د هغو په واسطه هغه نظریه په وینا یا لیک کې بیانېږي.
د هر علم دغه خاص مقولې یا علمي اصطلاحات د همغه علم ژبه تشکیلوي.
مثلاً که ووایو شي چې شعر محاکات دی، یا شعر مخیّل کلام دی، په
دې نظریو کې شعر، محاکات، مخیّل او کلام د شعرپوهنې ځینې مقولې
دي. له دې مثالونو څخه جوتېږي چې په علم کې هره مقوله د نورو مقولو
په واسطه، چې هغه هم په خپل وار توضیح غواړي تعریفېږي. د مثال په
توګه، که ووایو چې "شعر هنر دی"، د "شعر" مقوله د "هنر" د مقولې په
واسطه توضیح کړو. ورپسې سمدستي دا سوال رامنځ ته کیږي چې هنر
څه شی دی؟ که ووایو شي چې هنر د انسان په واسطه د ښکلا هستول دي،
نو بیا بل سوال را منځ ته کیږي چې ښکلا څه شی دی؟ که ووایو چې ښکلا احساس
دی، باید د احساس مقوله تعریف کړو چې هغه څه شی دی. دلته د
ارواپوهنې ارت او مرموز سیند ته ورګډېږو او مجبورېږو چې د احساس
او ادراک فیزیولوجیکي - عقلاني میکانیزم تشریح کړو. له دې مجمل

تفصیل څخه سم له دې سره دا مهمه نتیجه لاس ته راځي چې شعر یو هنر کوم ساده
او آسان علم نه دی، نور علمونه ورسره ګډ بریږي، خو پیچلی او مشکل علم
دی. مجرد علم هم نه دی، مرکب دی. له نورو پدیدو سره راز راز اړیکي
او ډېر زیات بُعدونه او اړخونه لري. سپېره کولای شي د شعر پر ماهیت،
د شعر پر اساسي توکو (تخیّل او تفکر)، د شعر د شکل او محتوی پر اړیکو،
د شعر پر هدف (رسالت) او دنده، د شعر پر وزن (ریتم، ایقاع) د شعر پر
لفظي او معنوي فنونو، د شعر پر قالبونو، ډولونو، میتودونو او سبکونو، د
شعر پر موضوعاتو، د شعر پر ژبه، د ملي، عقیدتي او نړیوال شعر پر ځانګړنو،
د شعر پر نقد او د نقد پر معیارونو، ضوابطو، ډولونو او روشونو، له فرد،
ټولنې او طبیعت سره د شعر پر اړیکو او په ګڼ شمېر نورو موضوعګانو باندې
خبرې وکړي.

ما مخکې وویل چې شعر یو هنر علم دی. آیا شعر یو هنر، د علم په
معاصر مفهوم، رښتیا علم دی؟ دې پوښتنې ته چا هم قانع کوونکی جواب
نه دی ویلی. ځینو ویلي دي چې هنر علم دی، ځینو ویلي دي چې هنر
علم نه دی، ځینو ویلي دي چې هنر دی او ځینې بیا وایي چې د علم او
هنر په منځ کې یو ډول پوهنه ده. زما ناقص عقل قبلولای شي چې شعر
پوهنه هنر نه دی، خو په دې نه پوهېږم چې د علم او هنر تر منځ پوهنه
به څنګه شی وي؟ یا تر شو دا خبره چې شعر یو هنر علم دی که نه دی؟
که زه ادعا وکړم چې شعر یو هنر علم دی، نو لوستونکي به مې له ګرېوانه
څخه ونیسي چې راځه ادعا دې ثابته کړه. نو مجبور یږم چې علم الشعر
له یو بل منل شوي علم سره پرتله کړم او خپله ادعا ثابته کړم.
خبره په منل شوي علم کې ده. مخکې مو هم وویل چې فزیک، کیمیا ،

بیولوژي او داسې نور طبیعي پوهنې علمونه دي. خو ټولنپوهنه، تاریخ، ژبپوهنه، ټولنیزه بشرپوهنه او دغه راز نورې پوهنې چې له طبیعت سره نه، بلکې له ټولنې سره اړیکې لري، علمونه دي که نه دي؟ ټولنیزې پوهنې که علمونه وي یا نه وي، زه کولای شم شعرپوهنه ورسره پرتله کړم.

ټولنپوهنه را اخلو. د ټولنپوهنې موضوع او مواد (ډېټا) یعنې انساني ټولنې او ټولنیزې مؤسسې د انسان له ذهن څخه بهر په عیني توګه موجودې دي. ټولنپوه یې مشاهده کوي، نمونې یې راغونډوي، تحلیل او تجزیه کوي یې او کلي نتیجې ورڅخه راباسي.

شعر هم د انسان له ذهن څخه بهر په عیني توګه وجود لري. شعرپوه کولای شي چې مشاهده یې کړي، نمونې یې راټولې کړي، تحلیل او تجزیه یې کړي او کلي نتیجې ورڅخه راوباسي.

نو که ټولنپوهنه د ټولنپوه له ادعا سره سمه علم وي، شعرپوهنه هم علم دی. خو له بده مرغه زیاتره شعرپوهانو، د ارسطو په شمول، د شعر پر ماهیت باندې اساسي غور نه دی کړی. شعر یې د نورو هنرونو تر سرلیک لاندې څېړلی دی. ارسطو هنرونه د هر ځانګړي هنر د بیان د وسیلې د ماهیت پر بنا سره بېلوي. نقاشي د نور او رنګونو هنر، موسیقي د غږونو هنر، معماري او مجسمه جوړونه د کتلې یې جسمونو هنر او نڅا د حرکاتو او اشارو هنر دی. د دغه هنرونو څو بنیادي توپیرونه سره لري چې دې پکې د بحث مهم دي: لومړی د هغو وسایلو توپیر دی چې دغه هنرونه یې د بیان او افادې لپاره په کار وړي.

دویم: د پیغام د رالېږدلو توپیر دی چې ځینې یې، لکه شعر، تل او په بشپړه توګه لري، ځینې یې لکه موسیقي کله یې لري او کله یې نه لري؟

ځینې یې لکه معماري هیڅ نه لري (مګر په نادرو حالاتو کې لکه د آتن د پرسبتې برمنډې). دریم توپیر دادی چې دغه وسیلې دانځور (تصویر) د جوړولو د توانمندۍ او د عاطفي اغېزې د شدت په لحاظ یې لري. د شعر د بیان وسیله د کلمو ترکیبونه دي. کلمې داسې بې غږیزو سمبولونه دي چې هرو مرو وضعي او مجازي معناوې او فرهنګي مصداقونه لري. ژبه د دغو سمبولونو فرهنګي، تولنیز نظام دی چې د ترکیب او تنظیم ټاکلي قواعد او جوړښت لري. د نورو هنرونو وسیلې داسې نه دي. غیر ټولنیز، غیر فرهنګي، بې‌معنا، فزیکي، طبیعي شیان دي. «شعر د هر بل شي په شان شکل او محتوا لري. شکل یې د وینا وزن دی او د همدې وزن له امله له یوې او موسیقي سره توپیر لري. شعر موزونه وینا ده، کیسه بې وزنه وینا، موسیقي یې وینا وزن دی.»(۱) کولریج وایي چې شعر د شدیدو عواطفو نابېره فوران دی. په دې کې شک نشته چې موسیقي خورا زور وره عاطفي اغېزه لري، خو د نورو عواطفو په بیانولو کې شعر ته رسېدلی نه شي. بو سېره پر دې، بېلابېل هنرونه د جلاجلا حواسو په وسیله درک کېږي. موسیقي د اورېدلو حاسې، نقاشي د لیدلو حاسي، خو شعر د اورېدلو او لیدلو له حواسو سره درک کېږي. له دې امله که څه هم شعر له نورو هنرونو سره ځینې مشترکات لري، ځینې مهم توپیرونه هم ورسره لري او نه شي کېدای چې له نورو هنرونو، مثلاً موسیقي، نقاشي یا معمارۍ سره یې کټ مټ یوشان وګڼو.

د منطق ځینې پوهان لکه ارسطو او د هغه پیروان لکه

(۱) دوکتور اج. آریان پور، جامعه‌شناسي هنر، کابل، ۱۳۴۶، ص ۷۶.

خواجه نصیر طوسي او ابن سینا د شعر د منطقي حدود او د
پنځو منطقي کلیاتو په چوکاټ کې تعریفوي او د عباراتو په لږ
څه تحریف او تغییر وایي چې شعر مخیل کلام دی. د غه ډول
تعریفونه، له دې امله چې عام کلیت لري د معرّف ټول ځانګړي
خصلتونه او جزئیات احتوا کولای شي: له دې تعریف څخه زیات
یا کم دونیم نده کاله تیرېږي او موږ لا تراوسه د خپل ذهن
ګریوان ددې تعریف له منګولو څخه خلاصولی نه شو. د ساینس
په ډګر کې پوهانو له دې محدودیت څخه ځانونه ایستلی دي او کله
چې خپله موضوع تعریفوي د هغې ټولې ځانګړتیاوې په عیني توګه
ازمویي او هغه ټول فهرستوي او دې ډول تعـــریف ته
Operational defination یا عملیاتي تعریف وایي.
دارسطو د غه تعریف هم ډول مخیّل کلام، که وزن (ایقاع-ریتم)
ولري یایې ونه لري، شعر بولي. ارسطو د خپل منطق د قواعدو
پربنا نشو ای کولای چې وزن ته په خپل تعریف کې ځای ورکړي.
بنایي له همدې امله نورو پوهانو دارسطو تعریف بشپړ کړی او
شعر یې مخیّل او موزون کلام بللی دی. خو سره له دې هم اکثر
شعر پوهان یوازې د شعر په مخیلتوب باندې ټینګار کوي او
وزن د شعر له لوازمو څخه نه ګڼي. زه غواړم په دې برخه کې
څینو ټکو ته اشاره وکړم. لومړی عامه ذهنیت را اخلو:
څو مره چې ماته څرګنده ده که د نړۍ د ټولنو عامه خلکو ته
سړی د شعر (د مفهوم په ډېره چې هره اصطلاح ورته پکاروړي) نوم
واخلي، موزون کلام ورته تداعي کېږي. بله موضوع د شعر تاریخ دی

د نړۍ په ځینو ټولنو کې چې لرغونی شعر لري او لیکلي اسناد یې پاته
دي، شعر ځنې یو ډول وزن (ریتم، ایقاع) لري او همدغه ډول وینا
یې د شعر په نامه خوندي کړې دي. د شعر د بې وزنه خبره اصلاً
له اروپا څخه، د ارسطو له وینا او د یورپ د اتلسمې پېړۍ له ځینو
شاعرانو څخه را مینځ ته شوې ده. په اروپا کې هم تر ۱۸ میلادي پېړۍ
مخکې د اسې کومه بېلګه ماته نه ده معلومه چې کوم شاعر د خپلو منثورو
او هنري لیکنو کوم دیوان د شعر په نوم یاد کړی او خلکو ته یې وړاندې
کړی وي. په ۱۸مه پېړۍ کې ځینو شاعرانو ښکلې منثورې هنري ټوټې
ولیکلې او ادعایې وکړه چې موږ شعر ویلی دی. دا د موزون شعر په
مقابل کې چې د دوی په عقیده د قوانینو رعایت کول یې د شاعرانو د آزاد
بیان مخه نیسي، یو عصیان و. ځینو پوهانو د دغه بغاوت ټولنیز او
اروا پوهنیز علتونه څېړلي دي. دوی مثلاً ویلي دي چې وزن په شعر
کې د بشري طبیعت او د انسان د خپل بدن د حرکاتو د طبیعي ریتم انعکاس
دی. د نورمال انسان د زړه ضربان د تلوګا مونه او په طبیعت کې له
باد څخه د ونو او بوټو د ښاخونو حرکتونه ریتمیک دي. د سندر بولو مرغانو
لکه بلبله، عندلیب، کنیري او نورو سندرې ایقاع (عروضي وزن) او ریتم
(سیلابي وزن) دواړه لري، ناشاپې نه ده چې شیلي شاعر په عندلیب
تشبیه کوي. دوی په دې خبره هم ټینګار کوي چې په شعر کې وزن
یو ټولنیز ضرورت هم دی. انسان کله کله غواړي چې ترنم وکړي.
له همدې مطالعو نه کې وینایي ترنم څخه شعر جوړ یږي. شعر یوازې
د شاعر د احساس بیان نه دی، د هغو نورو کسانو د احساسونو بیان
هم دی چې له شاعر سره یې څه ناڅه شریک دي، خو شعر نشي ویلای.

دغه کسان غواړي چې له شاعر سره یو ځای د ډله ییز ترنم وکړي . د
کورس په شان ترنم وکړي . د فرانسې د اتلسمې پېړۍ شاعران له
خلکو ، له ټولنې څخه بیګانه شوي وو . دوی داسې فکر کاوه چې خلک
دوی سره نه دي ، د دوی په افکارو او عواطفو باندې نه پوهېږي او
دوی یې تجرید کړي دي . نو له خپل ځان سره یوازې کښېناستل او داسې
بې وزنه شعرونه یې وویل چې د ډله ییز ترنم (حتی فردي ترنم) له فیضه
خالي وو . دغه ډول شعرونه او احساساتو او عواطفو یا د طبیعي
مناظرو صفت وصفونه چې په رومانونو په ډېر ماهرانه او ښکلي انداز
سره راغلي وو ، په ختیځو ژبو ترجمه شول او په دې توګه بې وزنه
شعر زموږ د ادب قلمرو ته هم راننوت . زموږ ځینې مقلدین وايي.
چې موږ له نړۍ سره سیالي کوو ، نړیوال شعر لیکو . بې وزنه شعر په
دنیا کې منل شوی دی ، موږ یې هم لیکو . زه د دوی مخه نه نیسم ،
ځکه چې نه حق لرم او نه یې نیولی شم . خو زما زړه ته دا ارمان راولوېږي
چې کشکې موږ هم د نورې نړۍ په شان فرهنګي ، سیاسي ، اقتصادي
حالت درلودای ! کشکې په موږ کې هم د علم ، تکنالوجۍ او تولید سطحه
خو لا پرېږده ، د ساده سواد سطحه په نړۍ کې د یوې ښې وروسته
پاتې ټولنې په اندازه وای ! کشکې زموږ د ولس نفوس دومره زیات
وای او زموږ په ژبه کې دومره علمي او هنري ذخیره وای او زموږ
تولیدات دومره وای چې د نړۍ خلکو موږ ته اړتیا لرلای او زموږ
په ژبه پوهېدلای چې موږ د نړۍ ټولو خلکو ته د دوی په دود او
سویه شعر ویلای او سیالي مو ورسره کولای ! زموږ ټولنه ترلې
ده ، موږ اوس د نړۍ په خلکو کې نه حسابېږو او لا جهان او د جهان

له خلکو څخه ورو ، ورو لا پسې لېرې کېږ و . د نړۍ په نورو هېوادونو کې چې بې وزنه شعر پیدا شوی او منل شوی دی ، دا د هغوی د اجتماعي فکري ، علمي ، اقتصادي ، سیاسي او نورو ملي او بین المللي مناسباتو زېږنده ده ، له شاعر څخه پرته اولس یې هم غواړي ، لولي یې او خوند ترې اخلي . بناءً یې له هغه نه دفاع هم کوي . پو ښتنه دا ده چې زموږ په ولس کې څو فیصده خلک سواد لري او شعر او کتاب لولي . څو کسه پېژني چې ارسطو ، افلاطون او نورو د شعر په باب دا یا هغه خبره کړې ده؟ د چا بې وزنه شعر خوښېږي . نه یوازې د شعرونو بلکه د ښکلا پېژ احساس او له هنرونو څخه د خوند اخیستلو سویه او کیفیت ، زما په نظر فرهنګي او تاریخي دي . له خاصو ټولنو سره پیوستون لري . څوک به دا خبره و مني چې زموږ اولس د بتهوون ، د موزارت ، د چایکافسکي په موسیقه پوهېږي او خوند ترې اخلي؟ چا دا خبره منلې چې موسیقي بین المللي ژبه ده؟ د نړۍ د نفو سو قاطع اکثریت ، د غه اولس هم ، چې شمېر یې ملیاردونو ته رسېږي ، د موسیقۍ په بین المللي ژبه نه پوهېږي . ویل کېږي چې شعر پر ته له ښکلا ، پرته له خپل ځانه بل مقصد او غایه نه لري . پېغام او معنا یې مهم نه دي . زموږ په اولس کې خو څوک بې معنا شعر ته غوږ نه نیسي . زموږ د خلکو په نظر که شعر کوم رسالت ، کوم پېغام ، کوم د نړۍ ارمان ، کوم سوز او ګداز ونه لري ، وزن ونه لري ، هغه له سره شعر نه دی . هغه هیڅ ښکلی نه دی .

له دې خبرو څخه زما مقصد دا دی چې د شعر په باب تیوریکي څېړنې زیاتره ذهني دي او له واقعیت سره یې زیاترو موادو کې

سموٺ نه لري . د ما په نظر د شعر پېژندنه باید لومړی په هغو ټوټو او هره تولنه کې په تاریخي او فرهنګي قرینه کې په عیني توګه ترسره شي او بیا دې له هغو څخه جامع نظري کلیې ، که چېرې پیدا شوای ، جوړې شي .

زه نه غواړم چې دلته شعر تعریف کړم ، خو تول پوهیږو چې شعر یو په زړه پورې ، د انسان د احتیاج وړ ، خو یو مرموز سحرآمیز او حیرانوونکې شانته هنري ، ژبنیز ذهني تخلیق دی .

شعر په خپله انسان جوړوي ، خو نه شاعر او نه شعر پوهان ورباندې پوهیږي چې دا څه ډول یوه پدیده ده . چا چې ادعا کړې د شعر په ماهیت پوهیدلي ، هغه یې تعریف کړی او خصوصیات یې ښودلي دي ، نه تول شاعران ورباندې قناعت کوي او نه د شعر تول څیړونکي . نه یوازې د شعر څېړونکي ، بلکه په خپله شاعر هم نه شي ویلای چې شعر څه شی دی ، څنګه ویل کېږي او په څه دردخوري؟ خو شاعر خپل شعر ونه وایي ، دی په خپله او نور ورڅخه خوند اخلي خپله معنوي تنده ورباندې ماتوي .

د شعر پر ماهیت ، د هغه د څېړنې پر دود باندې د علومو د بېلابېلو څانګو پوهانو ، لکه فیلسوفانو ، اروا پوهانو ، تولنپوهانو ، ښکلا پوهانو ، حتی په خپله شاعرانو بحثونه کړي دي . خو هر یو له د خپل تخصص د ډګر ، موضوع او اهدافو په چوکاټ کې ورباندې غږ پدلې ده . دغه بحثونه ډېر په زړه پورې دي . د نورو هنګرانو او پوهانو له خوا ورباندې بحثونه شوي ، منل شوي یا رد شوي دي .

د شعر پوهنې په بحثونو کې د شعر د منشاء او د شعر د هدف —

مسأله هم مهمه ده چې دې بحثونه ور باندې شوي دي. خو زیاتره
هغه مهم آثار چې پر دې موضوعاتو باندې لیکل شوي دي د غربي پوهانو
له خوا او غربي ژبو کې دي او بیا په عربي ترجمه کې له یوې ژبې څخه
پر نورو ژبو ژباړل شوي دي. په عربي، ترکي او فارسي ژبو کې هم
ځینې آثار پر دغو موضوعاتو باندې شته. خو له بده مرغه په پښتو کې
د شعر پوهنې پر موضوعاتو باندې دومره کم آثار لیکل یا ژباړل شوي
دي چې د ګوتو شمېر ته هم نه رسېږي. څو محدودې مقالې او رسالې
چې لیکلې شوې دي دومره نیمګړې او سطحي دي چې د شعر د شاګردانو
او نورو لوستونکو د علمي کنجکاوۍ تنده نه شي ماتولای.

د روهي صاحب دغه رساله، چې موږ او تاسې یې لولو، په پښتو
کې له لومړنیو آثارو څخه دي چې د شعر په واحده موضوع باندې په
زیات اړخیزه او ژوره توګه بحث کوي. دده د څېړنې دود تحقیقي-
تأملي دی. د پوهانو نظریې راخلي، تحلیلوي یې، ور باندې قضاوت
کوي او خپلې تجربې او نظریې په صراحت سره بیانوي.

رساله پر ۹ ... داسې مقالو (توکو) مشتمله ده چې د شعر په باب
ځینې مهمې موضوعګانې، لکه شعر پېژندنه، شعریت یعنې څه؟ نثر
او شعر، شعر او د نوبت مسأله، شاعر د شاعر په توګه، د شاعر قلمرو
او ادبي انزنبت احتوا کوي.

د رسالې له لوستلو څخه جوتېږي چې مؤلف، د شعر د ماهیت او ورسره
د مربوطو موضوعګانو په باب ځانته خپل نظریات هم لري او د غه نظر
سر تر پایه ټینګه نه خوري او په ثابته توګه پر مخ ځي، دا خبره تر زیاتې
اندازې پورې رسالې ته کلیت او د ده نظر ته وحدت وربخښي.

زه نه غواړم چې د مقدمه لیکونکو له دود او عادت سره سم د دې رسالې مهم ټکي تشریح کړم، لنډیز یې بیان کړم یا کره کتنه او قضاوت ور باندې وکړم. لوستونکي دې په خپله د غه رساله ولولي او قضاوت دې ور باندې وکړي. خو دومره وایم چې که د غه رساله چاپ شي د پښتو ژبې په څېړنیزو او تأملي آثارو کې به یو په زړه پورې او غنیمت اثر وي. دا رساله لوستونکو ته جوتوي چې د شعر څېړنه یوه ګرانه او پېچلې مسأله ده. د مؤلف په نظر په شعر پوهنه کې یوه مهمه مسأله د شعر د غرض او رسالت مسأله ده. له شعر څخه د سیاسي یا عقیدتي بهره بردارۍ موضوع او شاعر مجبورول چې باید څنګه او د څه له پاره شعر ووایي او شعر باید څنګه وي او دا مسأله چې شعر څه شی دی، شاعر څوک دی، څنګه او د څه له پاره شعر وایي؟

له بده مرغه د ټولنیزو علومو په څېړنو کې له لرغونو زمانو نه تر اوسه پورې د څېړونکو نظر، عقیده او قضاوت دخیل شوی دی. د شلمې پېړۍ له پیل څخه دغه مرض و بایي او مزمن شکل غوره کړی دی. له همدې امله د ټولنیزو علومو د څېړندود (میتود) په علمیتوب باندې شک را مینځ ته شوی دی. د دې رسالې مؤلف د غې مسالې ته په صراحت سره ګوته نیسي او درنه ویلیک، په شان د شعر پوهنې په تجویزي (دستوري) او تشریحي دوو دولو باندې، چې لومړنی مردود او دویم مرغوب دی، بحث کوي. خو دا خبره باید هېره نه کړو چې د سړې جګړې په بحراني او اوږده بهیر کې دوه نظریې هم یوه له بلې سره جګېدلې او اوس هم جنګېږي. تجویزي ادبپوهانو به ویل

چې ترصیفي (تشریحي) ادبیوهان څکه له تجویزي ادبیوهنې سره مخالفت کوي چې نه غواړي دسرمایه دارۍ د نړۍ استثماري ـ استعماري خصلتونه بربنډ کړي! نوڅکه وايي چې شعر کوم ټولنیز «انتقامي» غرض او هدف نه لري ، بلکې دشعر هدف په خپله شعر دی . دوی به ویل چې دغه خبره که په شکل کې تشریحي برېښي ، په محتوا کې تجویزي او تبلیغي ده . دوی هم وايي چې شعر باید داسې نوي او داسې دې وي . شعر دې تبلیغ نه کوي او تشریح دې کوي . دوهي صاحب به دې برخه کې بین البین او اعتدالي موقف لري او وايي کیداۍ شي چې په شعر کې بشرخواهانه او هوماینستي فکرونه او ایمانونه انعکاس عمومي ، نه مطلق حربې ـ عقیدتي ارمانونه ، دهې خبرې زمایه نظر دمقلد غیرشاعرو ناظمانو له پاره به څه ناڅه کټه وليږي ، خوشاعر ته څوک پندونوکولای نه شي ، هغه داسې یو سرتمبه او باغي موجود دی چې دخپل زړه خبره کوي . نه دروغ وايي ، نه چاپلوسي کوي ، نه غندنه کوي ، نه تبلیغ کوي او نه تشریح . هغه خپل احساس بیانوي ، حیرت نه خرابوي چې دچا خوښېږي اوکه دچا نه خوښېږي ، دچا په کټه تماميږي او دچا په تاوان . شاعر له چا نه عبرت نه اخلي . نور دې له هغه نه عبرت واخلي . دغه عبرت اخیستل شوی هم دی . دځینو شاعرانو خولې په مرغلرو ډکې شوې او دځینو خولې په تار اوسپن ګنډل شوې دي؟ حتی د منصور په شان په دار هم ځړول شوې دي!

ماته چې جوته شوې هم انسان ارمانونه لري اوله خپلو ارمانونو او هیلو سره ژوند کوي . شاعر هم انسان دی او خپل ارمانونه او

هیلې لري . خو دی د خپلو هیلو او ارمانونو د شمعې لېونی پتنګ دی ، شاعر وايي :

دافغان په ننګ مې و تړله توره
ننګیالی د زمانې خوشحال خټک یم !

شاعر د یهودي شایلاک ډرامه لیکي . شاعر وايي :

شهرت د عقل له نامه د افلاطون نه ، نه ځي
دآزادۍ مینه هیڅکله له پښتون نه ، نه ځي

افسوس چې ماسره د شاعرانو دېوانونه او هیڅ ډول کتاب نشته چې نور په زړه پورې د غه ډول مثالونه مې را وړي وای .

شاعر زما په نظر دوه ډوله ارمانونه لري : د هېکلاد هستوڼي ارمان او د خپل مثالي ژوند د جوړونې ارمان . نو خپله دنیا ښکلې کوي او په خپل خیال کې پکې ژوند کوي . کله کله د غه دنیا د ده شخصي دنیا نه وي ، د دنیا والو ښکلې دنیا وي .

ښه به دا وي چې شاعرته و نه وایو چې څه او څنګه و وایي . پرېږدئ هرڅه چې یې زړه غواړي ودې وایي . څوک چې په رښتیا شاعر وي ، شکسپیر وي ، خوشحال وي ، الفت وي ، ګویټه وي ، حافظ وي ، ایلیټ نو ایې ، شعر وايي .

پوهاند ډاکټر محمد رحیم الهام
د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پخوانی استاد
د افغانستان د علومو اکاډمۍ د اکاډمیسین کاندید

پېښاور ، ۱۹۹۶ دجنورۍ ۲۶

# د شعر پېژندنه

ځينې ادبپوهان وايي چې شعر څوک نشي تعريفولی، هماغسې چې
ښکلا او حقيقت د پېژندو ور نه دی، هماغسې چې خوند، رنګ او د کيفيت
جهان د تعريف په تنګ چوکاټ کې نه ځايېږي، شعر هم د ښکلا او
احساس له جهان سره اړه لري، د فورمول قالب ته ځان نه سپاري
ليکن دا يو ازمېنی دليل نه دی، له دې نه بل مهم دليل هم شته او
هغه دا چې هر شعر د يو شاعر د تخيل ذهني زېږنده دی او هر شاعر
له ژوندانه، له طبيعي او ټولنيز چاپېريال نه د ځان له پاره ټاکلی
بر داشت لري. د چا له پاره شعر وسيله ده او د چا په نظر شعر
پخپله هدف دی. څوک وايي چې شعر بايد ګټور وي او ټولنيز
رسالت ولري، خو ځينې نور له دې خبرې سره مخالفت کوي او
وايي چې شعر بايد تلپاتې ارزښت ولري، د يوې ډلې يا فرقې د
ګټو او د يوه سياسي رژيم د تبليغاتو وسيله و نه ګرځي.

د دغې وږو سټې پلې ادبپوهانو په نظر شعر زموږ په ترڅنګ او
بې خونده ژوند کې خوند پیدا کوي ، د خوښیو له پاره خلک له
ترخو واقعیتونو څخه د احساس ، عاطفې ، تخیل او ښکلا نړۍ ته را بولي ،
عواطف یې تصفیه کوي ، له زړونو څخه یې د یکنواختۍ او ابتذال رنګ
لرې کوي او دردونو ته یې څه تسکین ورکوي . درو ی په پوهه
شعر د دښمنۍ او کرکې د خورولو وسیله نه ده او نه د سوداګرۍ مال
دی ، بلکې مقصد یې د ښکلا بیان دی ، د احساس لېږ دونه ده ، د
یکنواخته میخانیکي ژوند پر ضد طغیان دی ، د ارمانیز ژوند
انځوردی او په ساحرانه الفاظو سره د احساس ښکاروونه ده ، د نیم بسمل
مرغه نغمه ده ، موزیکال فکر دی ، روحاني الهام او شهود دی ،
د هنر د آلهي پیغام دی او بالاخره شعر ، شعر دی .
د شعر د تعریف یوه بله ستونزه دا ده چې ځینې شعر په تشریحي
توګه او ځینې نور یې په تجویزي توګه تعریفوي . تشریحي تعریف
د ویل شویو شعرونو له مجموعې نه د شعر خصوصیات او ماهیت را اوباسي
په داسې حال کې چې تجویزي (دستوري) تعریف له مخکې نه د شعر
له پاره هدف ټاکي ، شرطونه ورته وضع کوي او شاعر ته دستور ورکوي
چې له همانه ټاکلي هدف سره سم شعر وواېي . یا په بله ژبه تشریحي
میتود وایي چې شعر څنګه دی او تجویزي (یا توصیوي) میتود وایي چې
شعر باید څنګه وي ؟
که څېړې د شعر پېژندنې په باب څېړې کېږي ، نو اکثر ادبپوهان
څېړنه له ارسطو نه را پیلوي ، ځکه چې دغه ستر یوناني فیلسوف
د شعر په باره کې د پوتیکا په نامه ځانګړې رساله لیکلې ده او په

او په مخې [illegible] د شعر په باب څینې اساسي ټکي بیان کړي دي. د ارسطو
په نظر ([illegible] ویا د ه چې په زړه کې هیجان پیدا کړي)(۱)
ارسطو د خپل وخت یو کتاب چې د طبیعي علومو په برخه کې یې نظم لیکل شوی
و، شعر ونه کا نه ځکه چې هیجان راوړونکی نه و. له دې څخه ښکاري
چې د ده په نظر، هیجان او عاطفه د شعر اساسي توک دي او هر نظم
ته شعر نه ویل کېږي. ځکه چې یونا ني شعر قافیه نه درلوده، نو موزون
کلام په واقعیت کې صدو في ویناته ویل کېده. په دې حساب علمي مفکوره
او د وزن لرونکي والی د شعر اصلي توکونه ګڼل کېږي.
د منطق پوهانو په عقیده شعر مخیل کلام دی او په دې اساس تخیل
د شعر بنیا دي عنصر ګڼل کېږي. (ابنا سینا) په دې باره کې دا سې
وایي: "ان الشعر هو کلام مخیل مؤلف من اقوال موزونه متساویه و
عند العرب مقفا ... ولانظر المنطقی فی شی من ذلک الافی کونه کلاما
مخیلا ... وانما ینظر المنطقی فی الشعر من حیث هو مخیل" (۲)
خواجه نصیر طوسی په خپل اثر (معیار الاشعار) کې وایي: "تخیل را
حکمای یونان از فصول شمرده اند و شعرای عرب و عجم از اسباب
حدوث او میشمرند" (۳)
[illegible] د منطق پوهانو له پورتنیو یادونو څخه باید دا سې نتیجه
واخیستله شي چې ګویا نور کاله مخکې هم بې وزنه یعنې آزاد شعر
موجود و. منطقي وایي چې که څه هم شعر موزون کلام دی او په
عربي ژبه کې قافیه وال هم دی، خو د دوی په نظر د غه شیان (وزن
او قافیه) په شعر کې تا کونکی نقش نه لري، بلکې یوازې تخیل اعتبار
لري، که چېرې وینا کې خیال (ایماژ، ذهني انځور) نه وي نو هغه شعر

نه دی . هغه څه چې موږ يې آزاد شعر بولو په ساينس کې د بې وزنۍ له مفکورې سره يو ځای وزېږېد . که ساينس بې وزنه شاعر منلای شي، نو ادبيات هم بې وزنه شعر جوړولای شي . که چېرې موږ د هنر په تاريخ کې د سنکرونېزم - همزمانۍ نظر ومنو نو دا به څرګند ليدل کېږي چې په شعر کې وزن د باداری له مقام نه وروو - وروراتيټ شوی دی او څينو خو بېخي شړلی دی . د سنکرونېزم په زمانه کې يعنې هغه وخت چې شاعر به هم سندرې ويلې او هم به يې نڅا ورسره کوله د شعر معنا ته د ومره پاملرنه نه کېده ، لکه څومره چې له ريتم (آهنګ) څخه خوندا خيستل کېده . سنکرونېزم لا اوس هم په ځينو قبيلو کې شته ، هلته څوک د شاعر او سندرغاړي ترمينځ توپير نه کوي . ويل کېږي چې د عربي ژبې د شعر کلمه هم د عبراني ژبې له شير څخه اخيستل شوې ده چې په اصل کې د ، سندرې په معنا ده . وروسته لکه څنګه چې د علوم څانګې يو له بله جلا شوې په هنر کې هم څانګې يو څه سره بېلې شوې ، لکه شعر ، سندره (په غاړه ويل) نڅا ، موسيقي او نور چې د بېلا بېلو څانګو په حيث پېژندل کېږي . سره له دې بايد ووايو چې د هنر څانګې يو له بله نږدې دي او ځينې يې خو پوره خپلواکي نه لري . د مثال په توګه نڅا موسيقي ته اړتيا لري او له شعر څخه چاره نه لري ( البته که څوک يې ډوله ګډېږي او يا بې محتوی سندرې وايي ، نو هغه بېله خبره ده ) .

اوس به خپلې خبرې راټولې کړو : د موويل چې شعر پخوا په غاړه ويل کېده او وزن يې درلود ، خو وروسته د ځينو اديبانو په نظر د غه دواړه عارضي او فرعي ونګل شول . که داسې وي ، نو د

شعریت معیار څه شی دی؟

کوم وخت چې موږ په شپږو ټولګي کې وو د شعر تعریف مو داسې اوریدلی و: شعر هغه وینا ده چې وزن او قافیه ولري، خو اوس چې د شعر په باب څېړنې کوو د هغو په نتیجه کې داسې تعریف استنباط کولای شو: شعر یو ډول آهنګواله ویناده چې پر عاطفو باندې اغېزه کوي، طبیعي ده چې اغېزه باید خوندوره وي، که نه نو هره اغېزه که شعر نه شو ویلای.

دیوه شمېر ادبپوهانو په نظر په شعر او په عام ډول په هنر کې د بیا جوړونې او تخیل عملیه تر ټولو مهمه ده. د مثال په توګه که څوک پر مړي باندې ساندې وایي او د اورېدونکي پر عاطفه باندې اغېزه کوي دا واقعي شعر نه دی، ځکه چې له واقعیت سره نېغ په نېغه اړیکي لري خو که څوک د سټیج پر سر نه مړه وي او قصه تمثیل کړي او د ساندو په ذریعه په اورېدونکي کې تاثیر پیدا کړي، نو دلته ساندې شاعرانه هویت پیدا کوي. یا په بله توګه که چا ته له یوې واقعي پېښې نه مستقیماً تاثیر پیدا شي، نو دا هنر نه دی، خو که څوک همدې پېښه په الفاظو تمثیل یا تصویر سره له سره ونیو دله شي نو دیته هنر ویل کېږي.

(تولستوی) وایي که چېرې څوک لېوه په سترګو ووینې او ترې وډار شي دا هنر نه دی، خو که دغه شخص چې لېوه یې لیدلی دی په اورېدونکو کې د هغو موږې واقعې په بیانولو سره وېره او ترس ایجاد کړي د غه عمل ته هنر ویل کېږي. له همدې امله ځینو ادبپوهانو د تقلید او زیاتره ادبپوهانو د تخیل او تصویر پر عنصر ډېرات ټینګار کړی دی.

د معاصر شعر تر ټولو اساسي مقولې تخیل، انځور (ایماژ، تصویر) عاطفه (احساس، هیجان) ښکلا او آهنګ (ریتم) دي. اوس به د همدغو لوستونکو د استفادې له پاره هره مقوله په لنډه توګه توضیح کړو :

تخیل (چې دیا ته د تخیل په نوم شهرت لري) په مختلفو عبارتونو تعریف شوی دی. که په ساده ژبه ووایو تخیل د دغسې ذهني تصویرونو یا مفهومونو د جوړولو عملیه ده چې هغوی په واقعیت کې موجود نه وي. په تخیل کې انالوجي (د مشابهتونو له لارې دشیانو یا پېښو پېژندنه) زیات اهمیت لري. په شاعرانه تخیل کې د داسې شیانو تر منځ اړیکې ټینګېږي چې عقلاني او منطقي نه ښکاري، لکه: د عقل لاس، د شفق سور ګرېوان، ستړې اړنوګانې، متحرک جسدونه او داسې نور. د تخیل له پاره دا لاندې بیت ولولئ :

ستا په انګو کې د حمزه د وینو سره کې
نه شوې د پښتو غزله ځوان نه دې باباکړم

البته له دغه بیت څخه هغه څوک په پوره خوند اخلي چې د حمزه د لقب (بابای غزل) یا (د غزل پلار) نه خبر وي او که څوک له دغه رمز نه خبر نه وي نو د پورتني بیت ښکلا او نازکخیالي نه شي درک کولی.

زه غواړم دلته یوه بله نکته هم اشاره وکړم او هغه دا چې په نوموړي بیت کې له شاعرانه منطق څخه کار اخیستل شوی دی او علمي منطق نه پکې چلېږي. له همدې امله یو چا د شعر په باب ویلي وو :

«معقول به نه وي چې ښکلی دی. آیا همدغه کفایت نه کوي؟»

تصویر یا ذهني انځور د شعر یو بل مهم توک دی. تصویر

په عاطفي توکه دبيري تجربې د انتقال او سپودنې وسيله ده. دتصوير په وسيله د دوو يا څو متجانسو شيانو ترمينځ اړيکې ټينګيږي او له همدې امله د تصوير جوړولو قدرت ترزياتې اندازې همانغه دتخيل قدرت دی. تصوير معمولاً د تشبيه، استعارې، سمبول او اسطورې په بڼه کې ځان ښکاره وي. ځيني تصويرونه مقيد او ځيني آزاد دي. مقيد تصويرونه د تکرار له لارې د يو ټولنيز قرارداد سطحې ته رسيدلي دي. د مثال په توګه، نرګس د سترګو، بنفشه د زلفو او سروه د قد مفهوم ښکاره وي. آزاد تصويرونه کيداى شي له يوې نه زياتې معناګانې افاده کړي.

عاطفه له ساينسي څخه د هنر د بېلولو عمده مشخصه ده. علامه اقبال (رح) وايي:

*حق اگر سوزی ندارد حکمت است*
*شعر میگردد چو سوز از دل گرفت*

واقعيت هغه وخت شاعرانه بڼه پيداکوي چې د عواطفو او جذباتو وړانګې پرې ولويږي.

بنګلا د شعر يو بل مهم توکی دی. د رومانتيزم مخکښانو بنګلا او کته يو د بل ضد ګڼل هغوی ته په خاصو شرايطو کې دا مفکوره پيداشوې وه او سنی ذهنيت دادی چې شعر بايد حتماً بنګلی وي او که کتور وي لا ښه. خو دا د يو هانو په نظر کتور توب د شعر ذاتي توکی نه دی. کيداى شي چې يو شعر دې بنګلی وي يا کتور دې نه وي، اما که شعر بنګلی نه وي نو هغه شعر نه دی.

اوس به راشو د آهنګ موضوع ته. په دې وروستيو وختو

کې د آزاد شعر د رواجېدلو له امله داسې مفکوره مېنځ ته راغله چې
ګویا وزن یا آهنګ د شعریت اصلي معیار نه دی، ځکه منثور شعرونه
او آزاد شعرونه وزن نه لري. ځینې ادیبوهان له دې خبرې سره موافقه
نه کوي، ځکه د هغوی په نظر آزاد شعر هم یو ډول موسیقیت او آهنګ
لري. د آزاد شعر او نظم تر مېنځ توپیر دا دی چې د آزاد شعر آهنګ
دیوې ټاکلې قاعدې تابع نه دی، په داسې حال کې چې عنعنوي(دودیز)
شعر ټاکلی وزن لري او په ځینو ژبو (لکه عربي، پارسي، پښتو او نورو)
کې قافیه هم لري. ځینې ادیبوهان وزن یا آهنګ د شعر اصلي او لازمي
توک نه ګڼي او آزاد شعر په رسمیت نه پېژني. له دې څخه جوتېږي
چې د شعر په تعریف کې د پوهانو تر مېنځ عمومي موافقه نشته. ځینې
داسې کسان هم پیداکېږي چې تعهد ( ژمنه، التزام ) د شعر ذاتي توک
ګڼي، خو اکثر ادیبوهان تعهد او اخلاقي یا سیاسي مسایل د شعر ذاتي
توک نه بولي.

د مقالې په پای کې د دې ټکي یادونه لازمه بولم چې نه پخپله په
شعر کې د یو پراخ هیومانېزم هر کلی کوم. زموږ په ټولنه کې له بده
مرغه د تعهد او همدارنګه د ریالېزم له اصطلاح ګانو څخه ځینو
کسانو ناوړه ګټې واخیستې. د تعهد پلویانو چې پخپله هم چندانې
متعهد نه وو، له دغې کلمې څخه د تهدید او وېرولو له پاره کار
اخیست. د ریالېزم پلویانو د واقعیت پالنې تر ماسک لاندې
دومره درواغ وویل چې د خلکو زړونه یې د ریالېزم څخه تور
کړل. که نن سبا د شعر په تحلیل او ارزیابۍ کې پر ټولنیز
رسالت او واقعیت پالنې زیات ټینګار نه کېږي، نو را ټولوونکی نسلونه

دې په دې برخه کې سو سيې سايکالوجيک ( تولنيز-اروايي ) قضاوت وکړي .

## يادښتونه:

* ځينې فيلسوفان وايي چې حقيقت نه پېژندل کېږي ، ځکه چې هيڅوک د دې ضمانت نشي کولای چې د انسان يا حيوان حواس دې کټ مټ بهرني شيان په اصلي شکل درک کړي . کېدای شي چې د انسان حواس دې د تکامل په بهير کې له نژدې نږدې کلونو وروسته شيان په بل ډول ووينې. دا يوه ژوره فلسفي موضوع ده چې جلا بحث غواړي .

(۱) دکتر پرويز ناتل خانلري ، شعر و هنر ، شرکت سهامی ايران ، چاپ ۱۳۴۵ هـ ش ، ص ز (۱۶۸) .

(۲) (صور خيال د شعر فارسي ) په حواله ، د دکتور محمد رضا شفيعي کدکني ، تهران ، ۳۴۹ مخ ، ۳۰ .




(۳) همدغه اثر ، مخ (۳۰)

* وزن د عربي او دري شعر و نو لپاره استعمالېږي او د عروض د علم مقوله ده ، په دغو ژبو کې لنډ (هجاء سليبل ) او اوږده څپه عمده نقش لري . پښتو شعر څپه ييز خجيز ( سيلا بوتونيک ) دی او د اروپايي ژبو د شعر له آهنگ سره نږدېوالی لري . په اسلاوي او ژرمني ژبو کې خج او په فرانسوي کې د هجاوو برابروالی د آهنگ اساس ګڼل کېږي . نو دا سې انګل کېږي چې وزن او آهنگ سره مترادف نه دي .

** د آزاد شعر اصطلاح زموږ فرهنګيانو زياتره د سپين شعر له پاره استعمالوي . سپين شعر باقاعده آهنگ لري چې د خج په اساس ټاکل کېږي . دغه ډول شعر قافيه نه لري . آزاد شعر آهنگ او قافيه نه لري ، ليکن يو ډول موسيقيت يا غير منظم آهنگ پکې شته .




# شعریت یعني څه؟

دځینو شعرونو په باره کې کله کله داخبره اورېدل کېږي چې (شعریت نه لري) ددې خبرې معنا داده چې دغسې شعرونه تش په نوم شعرونه دي، شکل او کالبد یې شعر ته ورته دی، خو دشعر جوهر پکې نشته.

که دیو سړي په باره کې وویل شي چې (سړیتوب نه لري) موږ په اسانه سره پوهېدای شو چې هغه دسړیتوب د پاره دوضع شوو نورموټو پېروي نه کوي او په اخلاقي لحاظ کمزوری دی . د اسې ښکاري چې دسړیتوب معیار دنورماتیف اخلاقو رعایت دی.

اما دشعریت معیار څه شی دی! دشعریت معیار باید هغه څه وي چې د هغه په نشتوالي کې شعر په (معر) بدلېږي. ویل کېږي چې (معر) یو مهمل او پوچ لفظ دی (پوچ په دې مانا چې معنوي بار نه لري).

دشعریت د معیار مسأله ډېره پېچلې ده. تر ټولو مهم دلیل یې دا دی چې دشعر د تعریف په برخه کې د ادبپوهانو ترمنځ عمومي موافقه نه لیدله کېږي. ټوکله چې پخپله دشعر پېژندنه (تعریف) تر پوښتنې لاندې راغلې ده، دشعریت

معیار ولرهم نشي ټاکل کېدای، سره له دې ادبي کره کتونکي د کلمه ستکي
(د ریاضی په ژبه مشترک مخرج) د پیدا کولو له لارې کولای شي د شعر
ماهیت او جوهر وپېژني. په شعر کې داسې توک (یا توکونه) شته چې
ادبپوهان د هغه (یا هغو) شته والی لازم (sine-qua-non) شرط بولي.
همدغه توک یا توکونه د شعر جوهر یا لومړنۍ تشکیلوي او د هغو نشتوالی په
حقیقت کې د شعریت نشتوالی ګڼل کېږي.

داچې وایي شعر تعریفېدلای نشي، د دوه ډوله ذهنیتونو زېږنده
دي. ځینې وایي چې د مختلفو او حتی متضادو تعریفونو څخه د انتخاب
مساله رامینځ ته کېږي. په دې صورت کې مونږ یو علمي (ساینټفیک) د
پوهېدلو له خوا منل شوی، تعریف نشو وړاندې کولی.

داخبره په ښتیا دیا ملرنې وړ ده چې شعر له ارزښتونو سره اړه
لري او ارزښتونه د فلسفې له لارې څېړل کېږي نه د ساینس له لارې. (البته
هغه ساینس چې دیوې مشخصې ایډیالوجۍ تابع وي، کله کله ارزښتونو ته هم
لاس ور غځوي) په عمومي ډول ارزښتونه (لکه ښه، بد، ښکلی او بدرنګ)
په اکسیالوجۍ پورې اړه پیدا کوي، چې زیاتره فلسفي او نیوتیکي بڼه لري.

د شعر تعریف نه د ډډه کولو په برخه کې یو بل تمایل داسې دی چې د
شعر هر ډول تعریف په نهایت کې میخانیکي بڼه پیدا کوي. نه غواړم له
شعرییت سره د ارتباط له امله یې د دې برخه کې یو څه توقف وکړم او د
موضوع د زیاتې روښانتیا د پاره څو مثالونه راوړم.

د ترکیې نامتو شاعر (ناظم حکمت) وایي چې شعر هغه خوش آواز
مرغه ته ورته دی چې باید غوږ ورته ونیول شي او له آوازه یې خوند
واخیستل شي. هغه کسان چې غواړي شعر تعریف او تحلیل کړي په واقعیت

کې د مرغه له غوښتو سره علاقه لري نه يعنې له آواز سره .(۱)

(جان سيان وی) اس يکالي ليکوال وايي : څوک چې آس د مسابقې د پاره وروزي او د سپه آس د ساتلو سره مينه لري هغه د آس د بيولوژيکي تعريف سره علاقه نه لري . د بيولوژي په اساس آس هغه حيوان دی چې څلور پښې لري څلور بيت غالبونه لري ، د تي لرونکو حيوانانو له جملې څخه دی ، سوه (سمونه) يې محکم بدی ، نحو نعل ته اړتيا لري او داسې نور نور ، اما د سوان کار د دغو مشخصاتو څخه د خپلې حرفې د پرمختګ د پاره د چند اړين کړه لتي اخيستلای ، هغه داسې آس غواړي چې مسابقه وګټي ، همدغه مطلب د شعر په برخه کې هم صدق کوي . د سپه شعر ديژندلو لپاره تحليل او کروکتنه يې ګټې کار نه دی ، خو دغه شيان هيڅکله د احساس ځای نشي نيولی . د احساس او تجربې ترمنځ د تضنيف او تحليل له ژ بې سره جوت توپير لري . د (ميلاد) خلک او پر انه مطالعه کوي ، بلکې (تنفس کوي يې)(۲)

ويل کېږي چې د آلمان د نامتو شاعر ګويته ، نه څو ښتنه وشوه چې د خپل مشهور اثر (فاوست) ايډيا په ټش تشريح کړي ، نو هغه د دغې غوښتنې له منلو څخه معذرت وغوښت .(۳)

ګويته چې د ادب له بوج سره اشنا وه په دې پوهيده چې د شکل په په تغيير سره محتوی هم خپل ارزښت له لاسه ورکوي او ادبي جوهر يې له مينځه ځي .

د دغو مثالونو په پای کې به د نړۍ د نامتو ساينس پوه (البرټ اينشټاين) څخه يو روايت رانقل کړو . له ده څخه وغوښتل چې د نسبيت تيوري په ساده او عام فهمه ژبه روته تشريح کړي .

(انشاءین) ورته قصه وکړه چې یوه پانده له چانه غوښتنه وکړه
چې (سپین رنګ) ورته تشریح کړي، ځکه هغه بیچاره په عمرکې سپین رنګ
نهٔ لیدلی. نو هغه سړي ورته وویل: (د شیدو رنګ دې لیدلی دی؟)
پانده وویل: (و نه) دشیدو رنګ څنګه وي؟». ده ورته و ویل:
« د شیدو رنګ دقاز په شان سپین دی.» پانده وپوښتل: «قاز څنګه وي؟»
هغه سړي په ځیل لاس ورته د قاز او د مټ تمثیل کړ، او پانده ته يې و ویل چې
زما لاس لمس کړه، د قاز او د مټ د غه شان وي) پانده د لاس سر د لمس
کولو نه وروسته ورته و ویل: «ښه اوس پوه شوم چې سپین رنګ څه وي!!»
د دغو مثالونو له راوړلو څخه مقصد دا دی چې په شعرکې د شعریت
ناوې ځیل ځان د تعریف څخه تر نه سپاري، «جورج والی» وايي:
« د شعر د ارزیابۍ د پاره هیڅ ډول بهرنی معیار او هیڅ ډول کمی
ارزښت وجود نهٔ لري.» (۴)
دا دې کړه کټونکو هغه له چې د شعر په تعریف پسې ګرځي، دېر
شمېر نامتو ادیبو هانو پر تعریفونو باندې ټکیه کوي، په دغوتعریفونو
کې تر زیاتې اندازې د شعریت مسأله د حل کېد و پېا وته نژدې کېږي.
دا دی یو شمېر مشهور تعریفونه:

د شعر د طبیعت تقلید (یا تمثیل) دی. «ارسطو»
شاعر له حقیقت څخه دوه ځلي لیرې کېږي «افلاطون»
(پارناس) شاعرنه دی ناظم دی. «جانسن»
د شعر غرض تخیل دی. «خواجه نصیرطوسی»

شعر یو قلابي تخلیق دی او شیان لکه څنګه چې دي هغسې يې
نه ښيي (تاسو سیلې نی) نو شعر لکه په نظم کې چې راځي په نثرکې هم راتلای

شي... جوهري اسطوره، افسانه یا شعر دی، دغه درې واړه یو شي

کې راځي (پرې سکاټ)

زه به د کلمو شعر هغسې تعریف کړم، لکه چې هغه د ښکلا آهنګوال

تخلیق وي. د هغه یوازینی قاضي ذوق دی. له عقل او وجدان سره

د هغه ارتباط ضمني (فرعي) دی.

که تصادف په پام کې و نه نیسو نو شعر له وظیفې یا حقیقت سره

سروکار نه لري. (اډګار الن پو)

شعر د قوي احساس تخیلي څرګندونه ده او معمولاً آهنګواله ده

... د چوپتیا په حالت کې د قوی احساساتو د طغیاني حالت راټولونه

ده. «ورډز ورث»

د ساینس خاص او مستقیم هدف د حقیقت لاس ته راوړنه او انتقال دی، د

شعر خاص او مستقیم هدف خوند دی... کاشکې ځوان شاعران د شعر او نثر په

باره کې زما د وستانه یادونې په یاد راوړي او هغه دا چې، نثر: په بهترین

شکل سره د الفاظو تنظیمول دی، او شعر: په بهترین نظم سره د بهترینو کلمو

پیل دی. (ساموئیل ټیلرکولریج)

مطلق شعر په جذباتي او آهنګواله ژبه د بشري فکر مشخصه او هنري

څرګندونه ده. (تیوډور واټس - ډانټن)

له دې امله به مونږ شعر موزیکال فکر وګڼو. (کارلایل)

یو واقعي نظم د تجربو تسلسل دی، کله چې مونږ هغه په شاعرانه توګه

لولو د آوازونو، تصویرونو، فکرونو او جذباتو له معبر څخه تېرېږو.

(انډروبراډلي)

شعر یوه ژبه ده چې په زیات یا کم هیجاني ډول سره هغه څه وایي چې ویل

کېداى نشي . هر شعر که لوى وي که کوچنى همدغه کار کوى .

(ايډوين ارلينګټن رابنس)

په شعر کې د لفظ معنا د هغه څه نه چې په قاموس کې يې راوړى، پراخه

ده. او د بيان قدرت يې زيات دى .        (پ ګورى)

سبه شعر معنا نه لري .        ابوالمعانى بېدل )

شعر نه دى داخوناب د زخمي زړه دى

يا د تلى دستي دم د خولې د مړه دى

يا د دينو اباسين وهلى موج دى

يا له مناره د حيرت وتلى فوج دى

(حميد مومند)

ځينې خلک تصور کوي چې د شعر هدف ښوونه ده او شعر بايد چې کله د

وجدان په بشپړولو کې زيار وباسي او يا د اخلاقو او ادابو ښوونه وکړي

او کله هم هغه څه چې ګټور وي، په ګوته کړي. . . .

شعر بې له خپل ځان بل هدف نه لري او نه يې شي درلودلى .

(شارل بودلر)

شعر بايد د ژوند د اړتياوو او معيارونو تابع نه کړو . د ګلاب ګل څوک

د دې د پاره نه خوښوي چې د هغه اوبه د سترګو د درمل په توګه استعمالېدے

شي، بلکې د دې د پاره يې خوښوي چې ګلاب ښکلى دى او ښکلا پخپله يو

مستقل ارزښت دى .        (رمي دوګورمون)

نه، د دنيوي لمسون د پاره نه،

د دنيوي حرص او دنيوي مبارزې د پاره نه؛

بلکې د خونړې سندرې د پاره، د الهام د پاره،

د دعا د پاره دی چې شاعر دنیا ته راغلی دی.

(پوشکین)

مونږ نه غواړو چې نقاشي او مجسمه جوړونه متحده کړو. شعر هم د نقاشۍ

موسیقۍ او مجسمې جوړولو په شان دی. (ژان پل سارتر)

سل واره وایم چې هنر د هنر د پاره (ویکتور هوګو)

ښکلي ده؟ ښکلی دی. آیا همدغه کفایت نه کوي؟ د ګلانو په شان

د عطرونو په شان، د مرغیو په شان او د ټولو هغو شیانو په شان چې بشر نشي

کولی په خپله خوښه هغو ته تغیر ورکړي او ضایع یې کړي. په عمومي توګه هر شی

چې ګټور وي ښکلی کېدای نشي، ځکه چې ورځنی ژوند ته ور ننوزي، شعر په

نثر بدلیږي، او آزاد مریي کیږي. هنر آزادي ده، پرتم دی، غوړېدا

ده، د روح غوړېدا ده په بطالت کې. نقاشي، مجسمه جوړونه او موسیقي

مطلقاً د هیڅ شي په درد نه لګیږي، مونږ د هنر د آزادۍ څخه ملاتړ کوو.

زمونږ په نظر هنر وسیله نه ده، بلکې غایه ده. هر هنرمند چې بې له ښکلا څخه

د بل شي په باره کې فکر کوي، زمونږ په پوهه هنرمند نه دی.

(ویکتور هوګو)

شاعر اوسه حتی په نثر کې. (بودلر)

مونږ شاعران له عدم سره جنګیږو، څو هغه په هستۍ بدل کړو،

د چوپتیا د دروازه په سوک وهو څو یوه ځواب ورکوونکې موسیقي

واورو.

مونږ لایتناهي فضا په یوه لویشت کاغذ کې ځایوو،

او د زړه له دوه ګوتو فضانه سیلاب را بهوو. (چیني سردار لوچي)

در شعر مپیچ و در فن او * که اکذب اوست احسن او (حضرت جامی رح)

هغه شاعر چې د ښتیا ویونکی نه وي مړ دی او هغه شاعر چې یوازې
دواقعیت پالونکی وي هم مړ دی. هغه شاعر چې غیرمنطقي وي یوازې پخپله
پوهېږي او د هغه مینه ، او دا ډېره له غمه ډکه پېښه ده، خو هغه شاعر
چې تل منطقي وي او ان سره د پوهېږي چې څه وایي هم له وحشته ډکه
خبره ده . ثابت او جاویداني احکام په شعر کې وجود نه لري . (پابلو نرودا)

د شعر هدف په ملت کې د روښنایي خپرونه ده . (اوکولت بابیه)

ستر شاعر او په عمومي توګه لوی لیکوال هغه دی چې خپل هېواد
ته ستر خدمتونه وکړي او ډېرې ښکېلې ورته ورسوي . (چرنیشفسکی)

هنر او ادب باید هغه څه ترسیم او تجسیم کړي چې اجتماعي انسان
ورسره علاقه لري او ناراموي یې . (پلیخانوف)

ادبیات د تصویرونو هنر دی او په هغه کې (لغ) او تبلیغاتي
افکار زیان رسوونکی دي. (لوناچارسکی)

دغه پورتني تعریفونه ځینې شاعرانه او ځینې ادب پوهنیز دي.
په ادب پوهنیزو تعریفونو کې ځینې تشریحي او ځینې توضیحي دي.
توضیحي تعریفونه ارمانیز او ایدیالوجیک دي او شاعر ته لارښوونه
کوي چې (باید) څه ډول شعر ووایي. اما تشریحي تعریفونه فقط دغې
ته اشاره کوي چې شاعرانو څه ډول شعرونه ویلي دي او د همدغو شعرونو
په استناد یې هڅه کړې ده چې د شعر ماهیت شرح کړي. په همدغه اساس
تشریحي تعریفونه که په ټوله معنا علمي نه دي، علمي ونه تعریفونه یې
ګڼلی شو او یا یې د علمي کولو په لاره کې یو کوښښ بولو.

په یادو شویو تعریفونو کې مشترک ټکي دا دي: تخیل، جذبات
(یا احساسات) ښکلا ، عواطف، خوند، مفکوره، په یوه یا بله بڼه د واقعیت

انګلند، همدغه ګډ تکی د شعریت معیار نه هم کمل کېدای شي.

دقیق ادبي کره کتونکي اعتراض کولی شي چې: (۱) دا د تعریفونو بشپړه بېلګه ( سامپل ) نه ده.

(۲) نمونې ادبپوهانو شعر موزون او مقفی کلام بللی دی، له دغسي یو متداول تعریف نه سترګې پټې شوي دي. (۳) په نورو تعریفونو کې تر زیاتې اندازې پورې د تعهد او رسالت برخه یا په بله ژبه اخلاقي موازین له نظره غورځول شوي دي. (٤) په ځینو تعریفونو کې د شعر پر ځای شاعر یا د شعر هدف، وظیفې او یا هنر تعریف شوی دی.

د لومړي اعتراض په ځواب کې باید وویل شي چې اکثر ادبپوهان او ادبي کره کتونکي د شعر په باره کې زیاتې خبرې کوي، خو په مستقیم ډول د شعر له تعریف نه ډډه کوي. د پورتنیو تعریفونو د موندلو له پاره ما ډېر کتابونه لټولي دي، حتی د ادبیاتو انسایکلو پیډیک قاموسونه (لکه په انګرېزي ژبه د نړېد دادبیاتو قاموس چې (۲۵۰) تنو ادبپوهانو یې په لیکنه کې ونډه اخیستې ده، د هرلمن دادبیاتو قاموس او نور) او د ادبپوهنې ځینې کتابونه لکه په انګرېزي ژبه دادبیاتو مقدمه په (۱۳۳۱) مخونو کې، دادب د تیورۍ اساسونه، مسایلی از فرهنګ و هنر وزبان او داسې نور) یو لنډ جامع تعریف نه ورکوي. په یوه کتاب کې (۳۵۹) مخونه د شعر پېژندنې ته وقف شوي دي، خو د شعر تعریف پکې نه دی راغلی. یو دلیل به یې داوي چې د ټولو د قبول وړ تعریف نشي وړاندې کېدای.

د دوهم اعتراض په برخه کې ویل کېدای شي چې په دې برخه کې دآهنګ کلمه کفایت کوي او همغه په تعریفونو کې راغلې ده.

د قافیې مسأله به نن یوالوا سبیاتو کې تر پوښتنې لاندې ده ، په تیره په انګریزي شعر کې له څلورو برخو څخه درې برخې شعرونه ( سپین شعرونه ) قافیې نه لري . همدارنګه داروپا په کلاسیک شعر او د هیومانستی بهیر د پلویانو په شعر کې قافیه نه مراعات کېده . البته د وزن برخه داهنګدریتم په بڼه په تعریفونو کې راغلې ده .

دریم اعتراض چې بنایي تر ټولو مهم اعتراض وي ، په شعر کې د اخلاقي موازینو هېرونه ده . په دې باره کې باید په صراحت سره وویل شي چې اخلاق واقعاً ښه شی دی ، خو د شعریت اصلي معیار نه دی او د شعر په نسبت بهرنی معیار ګڼل کېږي ، نه ذاتي معیار . د غلط فهمۍ د لرې کولو د پاره باید په دې برخه کې توقف وکړو .

( احسان طبری ) لیکي : (( حال سوال پیش می آید : در یک اثر هنری از اجزای سه گانه کدام مهمتر است ؟ بلا فاصله باید ( مختصات فکری ، بدیعی ، فنی ) گفت اگر یک اثر هنری فاقد مختصات بدیعی باشد همه چیز هست بجز اثر هنری زیرا آن ویژه گی که اثر هنری را به مثابه مظهر خاصی از خلاقیت شعور انسانی از انواع دیگر خلاقیت ها جدا میکند همانا ( بدیع ) یا هنری بودن آنست ، نه اینکه مشتمل بر فکر و اندیشه ایست ، یا حاکی از داشتن قواعد فنی معین . بهمین جهت حق است که اگر کسی را که موافق قواعد فنی و مراعات علوم عروض و قافیه و صنایع لطیفه و معنویه ابیاتی سروده است ولی شعرش از قریحه خلاق شاعرانه از سوزها و شورها ، از یافته ها و نکته دانی ها از احساسات و تخیلات از تعابیر و تصاویر بدیع وغیره تهی است شاعر ندانیم و تنها ناظم بشمریم .

آری یک اثر هنری تنها زمانی در خورد چنین نامی است که واجد

مختصات ضرور بدیعی لاقل به حد مطلوب دکافی باشد. ولی اگر مختصات بدیع جامه زیبایی بر پیکر زشت اندیشه های پوچ کژو زیانمند باشد چطور؟ آیا باز هم اثر هنری است؟ آری زهری شیرین وافیونی معطر است ولی اثر هنری است، چنانکه برخی از آثار فرانتس کافکا یا نوشته های صادق هدایت را میتوان ازین نوع شمرد. جامعه حق دارد آنرا تشویق نکند، ولی نمی تواند هنری بودنش را انکار نماید.»(۵)

له دغو یا دو نو څخه څرگندیږي چې شریعت او اخلاق لازم او ملزوم نه دي. له بده مرغه ځینې ادبپوهان یا ادبي کره کتونکي غیر اخلاقي له ضد اخلاقي سره مترادف بولي په داسې حال کې چې غیر اخلاقي یوازې دا مفهوم افاده کوي چې اخلاقي موضوعات (ښه یا بد) پکې نشته، کله چې نه وایم: (لمر راوخوت، آسمان شین دی) دا غیر اخلاقي جملې دي. شعر کیدای شي چې یوه منظره تو صیف کړي بې له دې چې اخلاقي قضاوت ورسره ملگري کړي. طبیعي علوم هم له اخلاقو څخه بحث نه کوي هیڅوک حق نه لري چې د فزیک پر کتاب باندې اعتراض وکړي چې ولې اخلاقي وجیزې پکې نه دي راغلي، ځکه چې فزیک یوازې طبیعي قوانین راسپړي. دا چې د تولنې واکمنان له دغو قوانینو څخه څنگه استفاده کوي د فزیک په علم پورې اړه نه لري. د شعر موضوع هم کټ مټ دغسې ده، شعر، شعر دی نه اخلاقیات (ایتیکس).

موضوع یو شی دی او شعر (شکل او محتوا) بل شی. شاعر کولی شي هره موضوع چې وغواړي د خپل ځان د پاره انتخاب کړي او په شاعرانه ژبه او بدیعي دول سره یې افاده کړي. سره له دې ځینې داسې موضوعات شته چې له شعر سره نه جوړیږي، لکه د فزیک او کیمیا فرمولونه شرح او

او یا هغو ته ورته موضوعگانې ، (لوناچارسکي) د شوروي اتحاد د
فرهنگي چارو مسوول په دې باره کې داسې لیکي : هغه هنرمند چې په خپل
اثر کې د هیواد د تطبیق شوو اقتصادي پلانونو هدفونه انځور وي ارزښت
هنرمندۍ سره هنرمند هغه دی چې داسې قلمرو ته لاره پیداکړي
چې تر اوسه پورې نه وي کشف شوي او په داسې حوزه کې کار وکړي
چې منطق او ارقام پکې لاس ونه لري .)(۶)

په همدې ارتباط یوه بله پوښتنه را ولاړېږي او هغه دا چې (شعر د
شعر د پاره دی) او که (شعر د ژوند د پاره) یا په بله ژبه : شعر د
ژوند د پاره دی که د خوند د پاره؟ په دې باره کې ډېرې زیاتې لیکنې
شوي دي، خو د امثاله لکه چې په سمه توگه نه وي درک شوې. هغو
کسانو چې (شعر د شعر د پاره) شعار وړاندې کړ هدف یې دا و چې شعر
باید په تجارتي متاع بدل نه شي ، د خوشامندۍ او چاپلوسۍ وسیله ونه
گرځي ، د ډله ییزو مقاصدو او ورځنیو تبلیغاتو د لاس آله نه شي ،
شعر د گېډې غذا نه ده ، بلکې د روح غذا ده . د هغو په نظر د شعریت
معیار ښکلا ده نه گټه . آیا ښکلا له ژوند سره اړه نه لري ؟ آیا په ژوند
کې خوند اهمیت نه لري ؟ که داسې وي نو شعر ژوند ته ښکلا او
خوند وربخښي او له بې خوندۍ څخه یې ساتي .

(اسماعیل نوري علا) د برادلي خبرې داسې رانقل کوي : « تجربه
(شاعرانه) هدف خود را درون خویش دارد (شعر برای شعر) و دارای
ارزش ذاتی است .
ارزش شعری این تجربه نیز تنها همین ارزش ذاتی می باشد .
شعر ممکن است دارای ارزش های خارجی نیز باشد و وسیله ای برای خدمت

په فرهنگ ومذهب محسوب گردد ، چراکه میتواند حامل دستورات باشد
یا از درد ها بکاهد و یا کار خوبی را انجام دهد ، چه بهتر ، بگذار
ازین نقطه نظرها نیز مورد ارزیابي قرار گیرد ، لیکن ازین ارزش خارجي
نمیتواند ارزش های شاعرانه ی آنرا تعیین کند.»(۷)
د (شعر د شعر دپاره) مفکوره په حقیقت کې د شعر په ذاتي ارزښت
باندې تکیه کوي او بهرنیو ارزښتونو عبوري او مؤقتي بولي .
د (پلیخانوف) په عقیده د (شعر دشعر دپاره) مفکوره په خاصو اجتماعي شرایطو
کې راولاړېږي . دا هغه زمانه ده چې شاعر له بورژوازۍ یعنې حاکمې طبقې
څخه ځان لیرې کړی دی ، له هغه سره همکاري نه کوي او په اصطلاح له
غله سره د جوال خوله نه نیسي او د هغه منفعت پرستي اپورتونیزم او
چالاکۍ ته په سپکه سترګه ګوري (۸) او غواړي چې هنر آزاد کړي ،
خپلواک یې کړي ، د بورژوازۍ په خدمت کې یې وانچوي .
د څلورم اعتراض په باره کې به همدومره یادونه کافي وي چې
ووایو : د شعر د پېژندلو سبه طریقه دا ده چې وګورو شاعرانو
څه ویلي دي . شعر د شاعر کار دی او همدغه شاعر دی چې شعریې
رامینځ ته کړی دی . داسې نه ده چې شعر له مخکې نه موجود وو او شاعر
هغه وموند یا یې لاس ته راوړ . نوځکه چې موږ د شعر په ارتباط
د شاعر کار څېړو داسې مانا لري لکه شعر چې موڅېړلی وي .

## نو شعریت یعني څه ؟

که پورتنۍ یادونې سمې او په ځای وي نو له هغو څخه قسماً دا
نتیجه لاس ته راځي چې د شعریت دپاره باید ورچیني (بهرنیو) –
معیارونو ته په (مخه سبه ) ووایو .

پاتې کېږي د شعر ځانې (ذاتي) توکونه چې عبارت دی له مفکورې، تخیل، احساس او آهنګ څخه او س به د هر یوه توک په باره لنډې یادونې وکړو:

(۱) **مفکوره**: په هر شعر کې باید یوه مفکوره نغښتې وي که دا باید کلمه حذف کړو، نو داسې به ووایو چې هر شعر له ځانه سره یوه مفکوره لري.

(کارلایل) وایي چې شعر موزیکال فکر دی، خو ځینې ادبیوهان مفکوره د شعر اصلي توکی نه ګڼي. دا خبره بېدل ته منسوبه ده چې وایي: «شعر خوب معنی ندارد». نامتو فرانسوي لیکوال او فیلسوف (ژان پل سارتر) هم په دې باره کې ځنې خبرې لري. هغه شعر له ادبیاتو څخه جلا کوي او ده په نظر شعر د موسیقۍ، نقاشۍ او پلاستیک هنر په شان پخپله غایت دی. په داسې حال کې چې ادبیات له ځانه سره یو پیغام او رسالت لري. همداغسې چې د موسیقۍ آوازونه کومه خاصه معنا نه سبندي شاعرانه الفاظ هم بې له دې چې پرخپل مدلول یا نښانه دلالت وکړي، د موسیقۍ د نوټ په شان لفظي تصویر جوړ وي. دغه تصویر د نقاشۍ تابلو یا مجسمې، یا پرتمینې ماڼۍ ته ورته دی چې فقط منځلا منعکسوي نه ضرورت او اړتیا.

د شعر حکم د نقاشۍ، مجسمه جوړولو او آهنګ جوړولو په شان دی، لکه چې (آرتور رمبو) وایي:

ای فصلونو، ای قصرونو!

کوم روح دی چې بې عیبه دی؟

شاعر له هیڅ څخه پوښتنه نه ده کړې. هیڅوک هم پوښتنه نه کوي. شاعر غایب دی او پخپله پوښتنه هم دې ته نه ده حاضره چې ځواب ورکړي

بلکې خواب دنده په پوسبتنه کې پروت دی . د شاعر مقصد داهم نه دی چې دوابې هرڅوک بوعیب لري . شاعر فقط شاعرانه خبره کړې ده، کوم هدف، پیغام یا ماناپکې نشته . دا لاندې شعر وګورئ:

وايلون او پیشکی

وهلی پوړته پوړته خپن کې

غوا د میاشتی د پاسه توپ و واهه

وړوکی سپي وخندل

چې دغه چلو نه یې ولیدل

پشقاب له څپلی کاشوغې سره منډې ووهلې

، دیوه انګریزي شعر ترجمه،

بنا غلی «ګل او ګل ایته» وایي چې د غه شعر نامعقول دی، هومعقول دی، مګر په زړه پورې شعر دی . کله چې ماشوم دا شعر اوري له خندا اوخوشالۍ ندلانوڅ پیکوي او توپوند وهي .

دا شعر نه دی، لوبه ده خوڅوک ثابتولی شي چې د شعر ویلوانګیزه د لوبي له انګیزې سره توپیر لري .»

هو نامعقول دی او بنايي همدا سبب دی چې شعر دی، هماغه د چا خبره چې د شعر قلمرو د منطق او ارقامو قلمرو نه دی . د شعر منطق خاص شاعرانه منطق دی . په شعر کې تشبیه، استعاره، تمثیل، حسن تعلیل مبالغه، بداعت، تخیل، اسطوره او داسې نور توکونه شعر له منطق او صوري تفکیر څخه لیرې کوي . د شعر صغری، کبری او نتیجه ځانته مخصوص شکل غوره کوي .

تو همچو صبحی و من شمع خلوت سحرم - تبسمی کن و جان بین که چون همی سپرم (حافظ)

دا شعر منطقي تحليل ته ضرورت نه لري ، ځکه چې « تحليل شعر بېخونده کوي .»

د آفتاب په کمند نه خېژم آسمان ته

نه ېږدم بار لکه شبنم په دوش د ګلو

(کاظم خان شيدا)

(اسماعيل نوري علاء) د (H. Coombes) خبره رانقلوي : (ظريف ترين وبرجسته ترين افکار فيلسوفان ، روانشناسان ومردم شناسان ونظاير آنها صرفاً با ورود در شعر ، شاعرانه نمی‌شوند . کسی که شاعرانه فکر ميکند خود شاعر است .) (۹)

وايي چې نامتو اديب (ادين) ته يو ځوان مراجعه وکړه او ورته وې ويل : « زه غواړم چې شعر ووايم ، لطفاً ما ته لارښوونه وکړه .» (ادين) ورځنه وپوښتل : « آيا د شعر ويلو له پاره کومه مهمه مفکوره لځانه سره لرې ؟ » هغه په ځواب کې ورته وويل : « هو ، غواړم يو مهمه مفکوره په نظم راوړم .» (ادين) ورته وويل : « ځه بچيه ! له تاځخه شاعر نجوړېږي ! »

دا خبره د مبالغې په توګه ويل شوې ده ، خو دهغو ځوانو شاعرانو د پاره ښه درس دی چې فکر کوي ښه شعر يوازې هغه شعر دی چې مهمه مفکوره پکې نغښتل شوې وی او يا شعار پکې راغلی وی . کله کله ديو شعر ښکلا ديوې کلمې په استعمال پورې اړه لري ، لکه په لاندې بيت کې د (عکس) کلمه ددوهم ځل د پاره :

مابرفتم وعکس ما باقي است = ګردش روزګار برعکس است

وګورئ د « الفت » د لاندې شعر په دروستيه مصرع کې د « ګرد » کلمې شعر څومره خوند ورکړی دی :

له کوم لوری را روان یو جهانګرد ؤ
مخ او ښتې باندې يې پروت د لارې ګرد ؤ

ماویل څه دې ولیدل په دې جهان کې
ویلې دومره شومه یوه چې جهان ګرد ؤ

په دې شعر کې نه د جهان د ګرد والي د د څمکې د ګرویت) مفکوره او نه د دورې او ګرځیدو نو څخه د جهان د د کوالي مفکوره د لوستونکي ذوق او پاملرنه راپارځوي بلکې په هنري توګه د مطلب افاده د خوند او التذاد منبع ګرځي .

د پورتنیو یا دو نوڅخه باید دا نتیجه وانه اخیستله شي چې ګو یا په په شعر کې مفکوره نشته او یا مفکوره څه ارزښت نه لري . اصلي مطلب دا دی چې مفکوره په شعر کې هغومره تاکونکی نقش نه لري، لکه څومره چې په هنري او بدیعي توګه دیوی مفکورې څرګندونه یې لري .

علمي پرنسیپونه ، تاریخي فاکتونه او فلسفي نظریې په شعر کې راټلای شي خو د هغو شته والي د شعریت معیار نه ګڼل کیږي .

علمي ، اخلاقي او فلسفي مفکورې باید شاعرانه شي ، د شعر تابعیت ومني په شعر کې جذب او الونیا شي او بیا ته خپل ځان په هنري میډیم کې را څرګند کړي . د ایران نامتو شاعر رید الله رویا يي ) لیکي: « مختصر آنست که شعر به کار ها وروز ها کاری ندارد ، نه نقل میکند و نه می آموزد ، شعر تنها ست و از هر اجباری رها . بر سرنوشت خودش حکومت میکند و نه بر هیچ سرنوشت دیگری. بد هی ای نه به جا معه دارد ، نه به اخلاق، نه به ایمان ودانش ، و در عین حال بیم دارد از ینکه چیزی پست و حقیر باشد » (۱۰)

د شاعر مقصد دا دی چې علمي، اخلاقي، مذهبي او سیاسي ارزښتونه
د شعر په نسبت بهرني ارزښتونه دي، نه د شعر ذاتي ارزښتونه. هغه څه
چې د شعر ذاتي ارزښت ټاکي هنري او ایستیتیکي خصوصیات دي.

ګل پاچا الفت) وايي: ((تاسې له شعر او شاعر نه علمي حقایق مه غواړئ،
د شعر هدف حقیقت نه دی جمال دی.))

هغه کسان چې شعر د ژوند هینداره یا د واقعیت انعکاس بولي، او په
عین وخت کې د ناب (خالص) شعر، فورمالیستي شعر او نورو غیر ریالیستي
شعرونو شته والی په رسمیت پېژني د خپل تعریف د توجیه کولو دپاره
باید د تناقض د حل لاره ولټوي. که چېرې غیر ریالیستي شعر ته هم شعر
ویل کېږي (او د دغسې شعرونو شمېر هم لږ نه دی) نو موږ نشو کولی
واقعیت د شعریت معیار وبولو.

لنډه یې دا چې په هر شعر کې یو ډول مفکوره شته، خو تش د مفکورې
شته والی د شعریت دلیل نه ګڼل کېږي، بلکې مفکوره باید په شاعرانه
صورت کې تجلي وکړي.

(۲) د شعر تر ټولو مهم او اساسي توک تخیل دی. ځینې ادبپوهان
د «تخیل» پر ځای د ((تخییل)) کلمه غوره ګڼي، خو څرنګه چې «تخیل»
کلمه عمومیت لري نو دلته له همدغه متداول لفظ څخه کار اخلو. (خواجه
نصیر طوسي) په «معیار الاشعار» کې ویلي دي چې د شعر غرض تخیل دی.

اما تخیل څه شي ته ویل کېږي؟ د تخیل اصطلاح ډېره اوږده
تاریخچه لري. د لرغوني یونان د زمانې نه تر اوسه پورې په دې باره
کې ډېر بحثونه شوي دي او ډېر ځله د هغه مفهوم لپاره Fantasy او Fancy
سره ګډ شوي دي. دلته به په لنډه توګه لومړی تخیل شرح او بیا وروسته

تعریف کړو.

دا روا پوهانو په عقیده شیان او پدیدې دحواسو له لارې په ارګانیزم باندې اغیزه کوي چې په لومړي مرحله کې احساس کېږي او بیا د ادراک پړاو ته رسېږي (پېژندل کېږي) د ادراک له لارې انسان یو شی پېژني. کله چې یو شی غایب وي احساس او ادراک هم محو کېږي، خو د هغه شي اثر په ذهن کې یو تصویر (ایماژ) پرېږدي. ذهني تصویرونه بیا بیرېیال دانګي و یه اثر کله په خپل اصلي صورت څرګندېږي چې هغې ته تداعي یا دونه (Recollection) ویل کېږي او کله په بدله بڼه کې تجلی کوي چې په دې صورت کې تخیل بلل کېږي. شاعرانه تخیل د ځینو په نظر شهود او الهام ته ورته دی او د ځینو نورو په عقیده په هغه کې یوه شعوري هڅه شامله ده.

د فلسفې قاموس (د مسکو چاپ، ۱۹۶۷ کال) تخیل داسې تعریفوي:
«تخیل هغه استعداد یا قابلیت دی چې د واقعیت نه د لاس ته راغلو انطباعاتو پر اساس په بشري شعور کې نوې حسي یا فکري ایماژ نه (انځورونه) تخلیق کړي هغه چې په ټاکلې شبه کې واقعي موجودیت نه لري.

تخیل نه یوازې په هنر کې، بلکې په ساینس کې هم اهمیت لري، ځکه د تخیل په واسطه فرضیې، ماډل مفهومونه او د تجربو دپاره مفکورې مینځ ته راځي. اما په تخلیقي فنونو کې تخیل یو اساسي عنصر دی. تخیل په شعر کې د تشبیهاتو، استعارو، څېرو او اسطورو په بڼه تبارز کوي. د لته له اسطورې څخه مقصد دراتلونکي وخت ایډیالي تجسیم دی. څېره (پورتریت) د موجودو شیانو او پدیدو عیني تصویر دی چې د انسان په واک یا قلمرو کې وي، خو اسطوره یو ایډیالي یا ارماني تصویر دی چې په موجوده وخت کې د انسان

له واک څخه وتلی وي . تخیل د ترکیب له لارې مختلف او نا متجانس شیان سره پیوندوي یا ګډوي .(*)

(۳) احساس : په شعر کې احساس یا عاطفه ضروري شرط دی. که شاعر درد، آرزو، احساس، اندېښنه، قهر او تاثر ونه لري نو لوستونکی یا اورېدونکی له داسې شعر څخه خوند نه شي اخیستلای. (لیف تولستوی) په خپل اثر «هنر څه دی؟» کې په دې ټینګار کوي چې د شعر اصلي وظیفه دا ده چې مقابل لوري ته احساس ورنقل کړي. (ساوستیانوف) لیکي چې «په هنر کې قضاوت، مفکوره او حقیقت په عاطفي بڼه تبارز کوي» او «د هنر وظیفه یوازې معرفت نه ده، بلکې هغه د انسان په وړاندې مثالي طرح کوي، ژوند ته خوند وربخښي او د نړۍ په ارتباط د ده عاطفي برخورد پیاوړی کوي.» (۱۱)

که څه هم د غه خبرې د هنر په باره کې په عام ډول څرګند وني کوي خو څرنګه چې شعر د هنر یو ممده توک دی نو طبعاً د شعر په باره کې هم صدق کوي. (امیر حسین اریان پور) لیکي: «بطور خلاصه: فلسفه محصول علم و هنر است، و علم شناختی است مبتنی بر مفاهیم کلی و دارای جنبه ادراکی قوی. پس بیش از واقعیت درونی واقعیت بیرونی را مورد توجه قرار میدهد. وچون ثبات نسبتی واقعیت بیرونی از واقعیت درونی بیشتر است، علم که بر واقعیت بیرونی تاکید میورزد، بیانی است نسبتاً قاطع، بیانی است کمی از وضع موجود واقعیت، از آنچه هست. هنر شناختی است مبتنی بر تصاویر جزئی و دارای جنبه عاطفی قوی. پس، بیش از واقعیت بیرونی واقعیت درونی را مورد توجه قرار میدهد... بیانی است نسبتاً خصوصی، بیانی است کیفی از تحولات واقعیت، از آنچه باید باشد، از امکانات امیدها، آرزوها.» (۱۲)

(موري، وايي((استر شاعر د ژ وند په باره کې د نتايجو دلاس ته راوړلو دپاره هڅه نه کوي، بلکې په هغه کې يو کيفيت تشخيصوي، د ده عواطف چې په يوه بل کې يې تداخل کړی دی، ودو، ورو په ده کې يو عادت را مينځ ته کوي، ځينې شيان او پېښې پرده باندې له نورو زياته اغېزه کوي ... زما په يو هم داد شاعر د تجربې اسلوب عاطفي بښتېدی»

د ايران يو مشهور شاعر او ادب پېژندونکی (نادر نادرپور) وايي: «من به آن چيزى شعر ميگويم كه در من انفعال عاطفي ايجادكند احساس واند يشه مرا بر انگيزد ومرا د ستخوش نوعى هيجان سازد.»[13]

شعر، که بشکلی وی يا هيجان پارونکی تصوير درلودونکی په هر صورت له احساساتو او عواطفو سره اړه لري.

(٤) وزم (آهنگ = Rhythm) : د(وزم) کلمه چې غاړې (لحن) او آواز ته ويل کېږي، دلته د(ريتم) يعنې د آواز دموزون والي په مانا استعمال شوې ده. په پارسي کې د(ريتم» دپاره د« آهنګ » له کلمې څخه کار اخيستل کېږي. مونږ کولی شو چې (وزم) - (ريتم) په معنا استعمال کړو. په شعر کې د منظمو او يا تقريبًا برابرو زماني وقفو تر مينځه د مشابه آوازونو تکرار ته ريتم ويل کېږي.

مونږ دلته هغو تجربو ته رجوع نه کوو چې ادوا پوهانو دوز م (ريتم) په باره کې کړې دي، خو داخبره څرګنده ده چې (که يو څپله آواز مکوه نروی) وزم داسان پر سايکلوجي باندې لذت بخښونکې اغېز کوي.

دا بايد ووايو چې هر شعر (د آزاد شعر په ګډون) هرومرو يو ډول وزم لري. حتی ښکلی او خوندور څېزي نثر هم يو ډول وزم لري

خو د آزاد شعر او هنري نثر وزم با قاعده او منظمه متریک بیلگه نه
تعقیبوي . ځینې ادبپوهان آزاد شعر د منظم وزن د نه درلودلو
په سبب اصلاً شعر نه گڼي . که خبره همداسې وي نو وزم د شعر
ارگانیک توک دی . که آزاد شعر ( لکه له نامه څخه یې چې څرگندیږي )
شعر وي ، نوهغه هم یو ډول وزم لري چې البته دنظم په اندازه باقاعده
نه دی .

## نتیجه :

شعر له څلورو ضروري توکو څخه جوړیږي - مفکوره ، تخیل ،
احساس (عاطفه) او وزم . ددې خبرې ضمني مانا داده چې هرنظم شعر
نه دی . په شعر کې د مفکورې شتون حتمي دی ، ځکه چې بې مفکورې
شعر ، شعر نه دی ، لیکن په شعر کې مفکوره باید شاعرانه ( په شعر کې
د افادې وړ ) مفکوره وي . له دغو توکو یا دونو څخه ورو سته ، کولی
شو د شعر د پاره دالاندې تعریف پیشنهاد کړو :
شعر په وزم لرونکې ژبې سره د مفکورې او تخیل عاطفي ترکیب
ته ویل کیږي .

## مأخذونه


( ١ ) د شعر په باره کې د واصف باختري ، مقاله ، لکچرهای اموزشی
برای اشتراک کنندگان نخستین کنفرانس سرتاسری نویسندگان جوان ، پوهنتون
کابل ، ١٣٦٢ .
(2) Barrow et al, An Introduction to Literature
Houghton Mifflin Company Boston 1959, PP. 665-66.

(۳) سرمحقق دوست شینواری ، داادب دتیهوری اساسونه، دولتي مطبعه ، ۱۳۶۵ ، ۸۵-۸۶ مخونه

(4) George Walley, Poetic Process, 1963. p. 235.

(۵) احسان طبری ، مسایل از فرهنگ وهنر وزبان ، انتشارات مروارید، چاپ اول ، تهران ،۱۳۵۹ هوش کال ، ( ۱۵- ۱۶) مخونه

(۶) لونا چارسکی ، درباره ادبیات ، مترجم :ع.ن ، کمیته دولتی طبع ونشر ، ۱۳۶۳، ص ۰ (۱٤) ۰

(۷) اسماعیل نوری علاء ، صور واسباب در شعرامروز ایران ، سازمان انتشارات بامداد ، چاپ اول تهران ؛ ۱۳۴۸ ، ص۰ (۸۴) ۰

(۸) دزیات تفصیل دپاره وگورئ : ادبي څېړنې دمحمدصدیق روهي تالیف ، ۱۳۶۰ ، مخ (۳۸)۰

(*) که هدف یوه سرپناه وي نو بیه کو د لههم ضرورت رفع کولی شي . پرتمینه ماڼۍ دښکلا د ذوق دتسکین دپاره جوړېږي،نه داړتیا درفع کولو دپاره . په یوه خاورین کنډولي کې هم اوبه څښل کېدای شي،نو بلوري ګیلاس دڅه دپاره جوړېږي؟ مجسمه، تابلو، زینتي بوټي اوګلان شعر او په مجموع کې هنر داړتیاووسره اړه نلري، مګر داچې دښکلاسره مینه په خپله یوه انساني اړتیا ګڼله شي .

(۹) اسماعیل نوری علاء ، صور واسباب در شعر امروز ایران ، چاپ اول ، سازمان انتشارات بامداد ، تهران ، ۱۳٤۸، ص ۰ (۵۰) ۰

(۱۰) اسماعیل نوری علاء ، هماغه کتاب ، (۲۸۰) مخ

(**) (اسطوره) د فلسفي متولې په توګه جلا مفهوم او تعریف لري ،

دلته دیوې ادبي اصطلاح په توګه راغلی ده.

(۱۱) «The theory of Reflection and the Arts» Savostyanov, Marxist-Leninist Aesthetics and the Arts, Progress publishers Moscow. 1980, pp. 143-44.

(۱۲) امیر حسین آریان پور، جامعه شناسی هنر، چاپ روتاسیون، مطبعه حزبی، مؤسسه نشراتی ح.د.خ.ا، ۱۳۶٤ هش کال حمل (۷۲) مخ.

(۱۳) مصاحبه علی اصغر ضرابی با نادرپور، مجله فردوسی، شماره ۸۱۰ به نقل از اسماعیل نوری علاء، همان کتاب.

## دشعر په باره کې څو یادونې

# ادبي ارزښت

د موضوع د روښانولو لپاره څیني خبرې، په یوه خاطره پیل کوم:

هغه وخت په دولسم ټولګي کې وم، کلیوالو به هر وخت داویلې چې: په زړه کې مې فکر وکړ، زړه مې راته وویلې. زړه مې ومنله او داسې نور.

دوی فکر کاوه چې زړه د فکر کولو غړی (ارکان) دی. ما په ښوونځي کې لوستي وو چې زړه د وینو د ویشلو دنده ترسره کوي. د فکر کولو غړی دماغ دی. یوه ورځ مې په دې باره کې ناسته خلکوته وویل چې: زړه فکر نه کوي، بلکې ماغزه فکر کوي. یو مشر چې په خبرو او استدلال کې ډېر تکړه و، دا خبره ونه منله. زمونږ د واړ و بحث د وام وکړ او په پای کې زه پړ شوم. دده استدلال دا وچې که چیرې زړه وینه ونه ویشي نو ماغزه هم کار نشي کولی، نو په دې

اساس ذړه د فکر کولو لپاره ضروري غړی دی او که ذړه ودرېږي نو فکر کول هم پای ته رسېږي . کلیوالو د ده پر دلیل او منطق آفرین ووایه او یوځای را ته خطاب وکړ «مکتبي پر شوې»

ما ټینګار کاوه چې نه نه یم پر شوی. دا سمه ده چې که زړه ونه وي نو ماغزه هم خپله وظیفه نشي ترسره کولی ، لیکن دا ددی معنا نه لري چې زړه فکر کوي .

د غه کلیوالی استدلال ډېر ځله زموږ د پخو اوستکړه لیکوالو په لیکنو کې هم ځان ځرګندوي . د مثال په توګه دوی وایي که مفکوره «ایډیا» نه وي نو شعر نه جوړېږي او له همدې امله مفکوره د شعر اساسی توک دی . وروسته دوی زیاتوي چې هره مفکوره د ځان د ځرګندولو لپاره پخپله یو مناسب شکل غوره کوي .

که موږ د غه ډول استدلال وکړو ، نو ویلی شو چې ډوډۍ د شعر اساسي توک دی ، ځکه چې که څوک ډوډۍ ونه خوري نو نه مفکوره شته او نه شعر . نبایې یو بل څوک اعتراض وکړي چې ډوډۍ ، څاوره اوبه ، لمر او هوا پورې اړه لري که د غه شیان نه وي نو نه ډوډۍ شته او نه شعر . نو موږ نه پوهېږو چې د شعر لازمي توک کوم دی؟

بله پوښتنه دا ده چې آیا هره مفکوره د شعر کېدلو لیاقت لري؟ یوځلی (لونا چارسکی ) د شوروی اتحاد د فرهنګي چارو مسوول ویلي وو « هغه هنرمند چې پخپل اثر کې د هېواد د تطبیق شوو اقتصادي پلانونو هدفونه انځوروي ارزښتمن هنرمند دی . ښه هنرمند هغه دی چې د اسې قلمرو ته لاره پیدا کړي چې تر او سه پورې نه وي کشف شوي

او په داسې حوزه کې کار وکړي چې منطق او ارقام پکې لاس ونه لري (۱)
دا خبره مونږ ته جنآت راکوي چې د ځينو «مترقي کره کتونکو» له انتقاد
څخه د بچ کېدلو مصوونيت احساس کړو. ځکه ځينې له شاعرانو څخه هداسې
غوښتنه کوي چې د پنځه کلنو اقتصادي پلانونو په باره کې شعرونه وليکي
او که دا کار نشي کولی نو لږ تر لږه بايد تيوريکي موضوعگانې په شعر
کې بيان کړي او يا د ورځې مسايل په شعر کې منعکس کړي.

زما عقيده دا ده چې د هرې مفکورې د پاره د شاعرانه پروسس
له تمهيد ونه وروسته د شعر کېدلو امکان شته، خو ځينې مواد په اسانه
سره د شعر په فابريکه کې د پروسس لپاره نشي تيارېدلی. مونږ بايد
ددې انتظار ونه لرو چې دوړين تارڅخه ورېښمين دسمال جوړ کړو.
په همدې ترتيب ځينې مفکورې سختې غير شاعرانه دي، لکه (لوناچارسکي)
چې ورته اشاره کړې ده.

که دا خبره سمه وي نو هره مفکوره حق د پره لوږه علمي مفکوره
يا د رياضي فورمولونه د شعر او شاعرۍ قلمرو ته نه ورننوزي. ددې
خبرې بله معنا دا ده چې پرازې شاعرانه مفکوره د ځان د څرگندولو لپاره
تماکلي شکل غوره کړي. ليکن دا يوه سته لانجه ده. څوک کولی شي
چې د شاعرانه او غير شاعرانه مفکورو د بېلولو لپاره يو اوږد فهرست
جوړ کړي؟ دا کار نه مطلوب دی او نه ممکن. مخصوصاً په دې
دليل چې له شاعرانه هيله کېږي نوې مفکورې وړاندې کړي او کمچانه
له سختکې نه معلومه وي، نو په دې صورت کې شعر نوښت نه لري او

---

(۱) لوناچارسکی، درباره ادبيات، مترجم: ع. د کميته دولتي طبع ونشر، ۱۳۶۳، ۱٤ مخ.

خپله بې ارزښت له لاسه ورکوي. که منګوره د شعر تاکوسکی
ترک دی نو شاعر باید پخپله ستړ منکر وي، په داسې حال کې
چې د صنعتي له مخې دا خبره سمه نه ښکاري. ډېر لوی شاعران
شته چې فن کاران، اسطوره او فانتازي وړاندې کوي او منکران
یې علمي ارزښت نه لري، مګر د اد بي ارزښت څخه یې څوک سترګې نه شي
پټولی. ادبي ارزښت له علمي، فلسفي یا اخلاقي ارزښت سره ارګانیک
پیوستون نه لري، همدغسې چې شعر د ژبني جوړښت او آهنګ له مخې
له عادي وینا (نثر) سره توپیر لري، د شاعرانه شوو منګوري هم د
کلتور له عادي منګور و سره یو شان نه دي. همغه شان چې شاعرې
په شعر کې ویلی شي د عادي شخص لپاره جواز نه لري، د مثال په توګه
د خوشحال خټک دا شعر :

نه خوشحال کمزوری نه یم چې به هار کړم
په ښکاره ناست وهم چې خوله یې را کړه

یو شاعرانه طغیان دی. د غسې طغیان په شعر کې ډېر خوند کوي
مګر که خوشحال خټک د غسې خبره په نثر په یوه لوی مجلس کې
ویلې وای، سپین ږیرو او درندو پښتنو به سخت خپګان څرګند
کړی وای او د پښتني کلتور له نورمونو څخه به یې انحراف ګڼلی وای.
حافظ شیرازي په صراحت سره په دغه بیت کې شرابو ته
اشاره کوي :

آن تلخ وش که صوفی ام الخبائثش خواند
اشهی لنا واحلی من قبلة العذارا

دا بیت د کلتور له منلشویو نورمونو څخه تیری دی، لیکن د

شعریت په برکت نه یوازې بیاچې څوک یې بد نه ګڼي لیکن په ... او خوند یې تکرار وي . ټولنه د شاعرانو رندی، طغیان او له کلتوري نورمونو څخه تیری ز غملی شي او له ډېرو تنګ نظره متعصبو پرته نور خلک له دغسې سرغړونو څخه خوند اخلي .

د دې خبرو نتیجه دا ده چې شاعرانه « بد اخلاقي » د هادې اشخاصو له بداخلاقۍ سره توپیر لري .(اپلاتون) ډېر نیار وایست چې د (هومر) شعرونه سانسور کړي، ځکه دده په عقیده د (هومر) شعرونه د ځوانانو اخلاق فاسدوي، لیکن څه فایده یې ونه کړه ، ځکه چې (هومر) شعر ویلی ؤ ، او حتمي نه ده چې شعر دې د نورو ماتیف اخلاقو تابع وي .

د حمید په دیوان کې دا شعر زیات شهرت لري :

خط پرمخ د صنم راغی که سپوږمۍ شوه په هاله کې
دا یې غاښ پر خوله کې زیب کاکه ژاله شوه په لاله کې
دا زما له غمه شین زړه پکې خیال د یار د شربنه و
هسې رنګ زیب او زینت کا لکه مې په شنه پیاله کې

ټول ادبپوهان په دې خبره پوهېږي چې د صنم پر مخ د خط راتلل کوم پر ول معشوق ته اشاره ده . په دې کې هم د کلتور له نورمونو څخه انحراف لیدل کېږي . سره له دې چې د غه شعر د حمید په ادبي شهرت کې ډېر زیات نقش لري .

له پورتنیو خبرو څخه مونږ یوې بلې نتیجې ته رسېږو او هغه دا چې د مفکورې څرګوالی دادبي ارزښت لپاره تر کومې عامل نه ګڼل

کېږي. یوه مفکوره بنایي علمي، فلسفي یا اخلاقي وي او حتی وزن او قافیه هم ورکړل شي اما له دې سره سره د ادبپوه او شعر پېژندونکي په نظر له ادبي ارزښت څخه به برخې وي. هر نظم شعر نه ګڼل کېږي او حتمي نه ده چې هر شعر دې منظوم وي. له دې امله د وزن او قافیې په درلودلو سره حتمي نه ده چې یوه مفکوره شعر وګڼل شي.

(اسماعیل نوري علاء) د اخبر را نقلوو: «ظریفترین و برجسته‌ترین افکار فیلسوفان روانشناسان و مردم شناسان و نظایر آنها صرفاً باورود به شعر، شاعرانه نمیشوند. کسیکه شاعرانه فکر میکند خود شاعر است»[1]

وایي چې یو ځوان نامتو ادبپوه (ادین) ته مراجعه وکړه او ورته ویې ویل: «زه غواړم چې شعر ووایم، لطفاً ماته لارښوونه وکړه».

ادین له ده څخه وپوښتل: «آیا د شعر ویلو لپاره کومه مهمه مفکوره له ځانه سره لرې؟» هغه په ځواب کې ورته وویل:

«هو، غواړم یوه مهمه مفکوره په نظم راوړم.»

د دغه ځواب په اورېدو سره (ادین) ورته وویل: «ځه بچیه له تا څخه شاعر نه جوړېږي.»[2]

کېدای شي د اخبرې د واقعیت خوښوونکو (ریالستانو) په نظر یو څې اوبې مفهومه ښکاره شي. د دلته هدف دا نه دی چې د اخبرې دې ومنل شي، بلکې هدف دادی چې واورېدل شي. یو څوک نن یوه خبره اوري یو څه او بې معنا ورته ښکاري، سبایې بیا اوري څېړنې پکې وهي. همدا څېړنه وصل پخپله ډېر اهمیت لري. (پابلو نېرودا) وایي چې: «ثابت او

---

(۱) اسماعیل نوری علاء، صور واسباب در شعر امروز ایران، چاپ اول، انتشارات بامداد، تهران، ۱۳۴۸- مخ ۵۰.
(2) Barrow et al An Introduction to Literature. 1959

جان پيدا يي احکام په شعر کې وجود نه لري.» مهم ټکی دا دی چې مختلفې نظريې په دقت سره او له پخوا څخه موضعګيرۍ پرته وارزول شي.

موږ ته لا لوړ ته څرګنده ده چې ادبي کره کتونکي د شعر د ارزښت ټاکنې لپاره له بېلابېلو معيارونو څخه کار اخلي. څوک د شعر اخلاقي او تربيتي اړخ ته ارزښت ورکوي، ځينې يې د سايکالوجۍ له پلوه څېړي، ځينې يې د ټولنپوهنې په هنداره کې ګوري، څوک اسطورې پکې لټوي، څوک يې يې استتيکي ارزښت ټينګار کوي او ځينې نور ورباندې نور معيارونه تطبيقوي.

زما په عقيده علمي، اخلاقي او فلسفي ښېګڼې د شعر په نسبت بهرنۍ توکونه دي. که شعر د اخلاقو په ترويج د علومو په تعميم او د فلسفي افکارو په تعميق کې برخه واخلي دا به د ډېر ګټور کار وي او دا به داسې مثال ولري لکه ميوه زينتي ونه چې د ښکلا په خاطر کېنول شوې وي او خلکو ته ميوه هم ورکړي. شعر د زينتي ونې په شان دی په اصل کې د ښکلا لپاره دی او که ګټه ولري، نو دا خو کومه د اعتراض وړ خبره نه ده. معتبر او ماهر خلک بنايي د زينتي ونې له ميوې څخه استفاده هم ونه کړي او دا يوازې غريبان دي چې ميوې ته يې سترګې نيولې وي. د خوراک لپاره د خوند او ښکلا مسأله دوهمه مسأله ده، تر هر څه د مخه بايد د دوک کېډه مړه شي. له دې څخه ښکاري چې ښکلا او اړتيا بېلابېلې پديدې دي. يو شی به ښکلی وي خو ګټور به نه وي او يا د دې په خلاف ګټور به وي خو ښکلی به نه وي.

شعر ډېر ارزښت له ښکلا څخه اخلی نه له اړتيا څخه (مګر دا چې ښکلا خوښونه هم يو ډول اړتيا وګڼله شي.) ناستوليکوال (ويکتور هوګو)

وايي : « څه ګټه نه لري؟ ښکلې دي، آيا همدغه کفايت نه کوي؟ د ګلانو په شان، د عطرونو په شان، د مرغيو په شان او د ټولو هغو ښايستو په شان چې بشر نشي کولی په خپله خوښه هغو ته تغيير ورکړي او ضايع يې کړي. په عمومي توګه هر شی چې ګټور وي ښکلی کېدای نشي، ځکه ورځني ژوند ته ورننوزي، شعر په نثر بدلېږي او آزاد مري يې کېږي. هنر آزادي ده، پر تم دی، غوړېدا ده، د روح غوړېدا ده په بطالت کې. نقاشي، مجسمه جوړونه او موسيقي مطلقاً د هيڅ شي په درد نه لګېږي. موږ د هنر له آزادۍ څخه ملاتړ کوو. زموږ په نظر هنر وسيله نه ده، بلکې غايه ده. هر هنرمند چې بې له ښکلا څخه د بل شي په باره کې فکر کوي، زموږ په پوهه هنرمند نه دی.»

نامتو فيلسوف (ژان پل سارتر) شعر له ادبياتو څخه جلا کوي، د نقاشۍ موسيقۍ، مجسمه جوړونې او معمارۍ په کتار کې يې دروي.
طبعاً د ده منظور له شعر څخه ايډيال شعر دی، نه هر ډول منظوم اثر.

د سارتر په عقيده شعر د موسيقۍ، نقاشۍ او پلاستيک هنر په شان پخپله غايت دی. په داسې حال کې چې ادبيات التزام او تعهد قبلوي او کولای شي يو پيغام ولري، شعر د التزام وړ نه دی هماغسې چې د موسيقۍ آوازونه کومه خاصه معنا نه ښندي، شاعرانه الفاظ هم بې له دې چې پر خپل مدلول يا ښيانه دلالت وکړي د موسيقۍ د نوټ په شان لفظي تصوير جوړوي. دغه تصوير د نقاشۍ تابلو يا مجسمې يا پر تميني ماڼۍ ته ورته دی چې فقط ښکلا منعکسوي ته ضرورت او اړتيا.(۱)

---

(۱) شعريت يعني څه؟ روهي، کابل مجله (۸-۹) ګڼه، ۱۳۶۶ هـ ش، مخ ۳۲

د محترمو لوستونکو په اجازه دلته یوه بله خاطره لیکم . د پغمان
په یوه باغ کې مو له دوستانو سره میله جوړه کړې وه ، یو چا د افسوس
په لهجه وویل چې د هغه مخامخ ماڼۍ تخریب شوې ، ځوځله وران شوی او
بیا جوړ شوی دی ، ځکه چې د باغ خاوند به چې په ماڼۍ کې څه نیمګړتیا
ولیده ، ماڼۍ به یې وړانګه او بیا به یې د نوي ډیزاین په اساس جوړوله ،
په دې ترتیب په ملیونونو افغانۍ هدر ولاړې .
ماورته وویل : د هغه ماڼۍ د سرپنا د پیداکولو لپاره نه ده جوړه
شوې . د ماڼۍ خاوند د کابل په ښارکې کور لري . دا ماڼۍ د هنري
ذوق د تسکین لپاره ودانه شوې ده ، نه دا چې تیا د پوره کولو لپاره
په دې اساس ویلای شو چې ګټه او ایستیکي ذوق هر وخت سره غاړه غړې
کېدای نه شي . د شاعر چې خپل شعر خوښ نه شي له سره یې جوړوي ،
د نقاش چې تابلو خوښه نه شي هیسته یې غورځوي ، اما کلال خپل منګی
نه ماتوي ، ځکه چې یو غریب خو به پیدا شي چې په ارزانه یې ورباندې
خرڅ کړي . یو تاجر تر څو چې امکان ولري خپل خراب او خوسا شیان
هم په پیسو خرڅوي . البته د دې احتمال شته نفي کولی چې یو وږی
شاعر دې د حق الزحمې لپاره یو بې خونده شعر هم چاپ ته وسپاري
او همدغسې نقاش دې واخله . خو بحران حالات او استثنایي حالات
دي . هنر په عام ډول له ذوق سره تړاو لري : ذوق یې خوښوونکی او
روزونکی دی او ذوق یې قاضي دی . د ادبي او هنري ارزښت د
ټاکلو لپاره هیڅ کوم ټاکلی فورمول - چې د علمي فورمول په شان
د تولو لپاره د منلو وړ وي - نه دی وضع کړی . ادبي ارزښت په
نهایت کې پر ذوق تکیه کوي . نامتو لیکوال « اډګار الن پو » په دې باو

کې داسې وايي: « نه به د کلمو شعر هغسې تعريف کړم لکه چې هغه د ښکلا آهنګوال تخليق وي. د هغه يوازينی قاضي ذوق دی. له عقل او وجدان سره د هغه ارتباط ضمني (فرعی) دی. که تصادف په پام کې و نه نيسو نو شعر له وظيفې يا حقيقت سره سروکار نه لري»[1]

د فرانسې ستر شاعر (شارل بودلر) د شعر په باره کې داسې نظر څرګندوي: « ځينې خلک تصور کوي چې د شعر هدف ښوونه ده او شعر بايد چې کله د وجدان په ښتېو ولو کې زيار وباسي او يا د اخلاقو او آدابو ښوونه وکړي او کله هم هغه څه چې ګټور وي په ګوته کړي ... شعر پې له خپل ځانه بل هدف نه لري او نه يې شي درلودلی.»

که دا خبرې و منل شي نو د شعر ارزښت څنګه ټاکلی شو؟

دا په اوږد بحث غواړي، خو دلته بايد دومره و ويل شي چې شعر د تعريف او تحديد په واسطه ميخانيکي بڼه پيدا کوي. موږ کولی شو چې د خوندورې غذا د پخولو لپاره د آشپزۍ له کتاب نه استفاده وکړو. هلته د هر شي اندازه، د حرارت اندازه او حتی د وخت اندازه، هرڅه ليکل شوي او د تطبيق وړ دي، اما د شعر مسأله داسې نه ده، د شعر په پېژندلو او حتی د شعر په باره کې د تخصص درلودلو په سبب څوک شاعر کېدای نشي. طبيب، انجنير، کرنپوه (اګرونوميست) پيلوټ او داسې نور له نظري درس نه وروسته په تطبيقي برخه کې هم پر مخ ځي. اما د شعر پېژندنې او ادبپوهنې په

---

(1) william F. Thrall and Addison Hibbard · A HANDBOOK TO LITERATURE (revised) The odyssy press, New york, 1960 · p365

برخزکې په تخصص درلودلو سره حتمي نه ده چې څوک ښه شعر ووايي.
سره له دې چې د دې خبرې معنا دا نه ده چې د شعر د ماهیت او جوهر
پیژندنه د شعر ویونکو سره مرسته نه کوي او یا دا چې اصلاً د
شعر له پیژندلو پرته شعر ووایي. شعر خپل ارزښت له هنري
ژبې، تخیل، تصویر، آهنګ او عاطفي بار څخه ترلاسه کوي، چې
د دې ټولو شرح جلا بحث غواړي.

## نتیجه:

شعر دوه ډوله ارزښتونه لري: ذاتي او بهرني.

د شعر بهرني ارزښتونه اخلاقو، علم، فلسفې، سیاست، مذهب
یا ایډیالوجۍ ته خدمت کوي. متعهد شاعران د شعر بهرنیو ارزښتونو
ته زیات اهمیت ورکوي. متعهد شعر دیوې ټاکلې طبقې، قشر، سیاسي
یا مذهبي فرقې مرام ته وقف شوی وي او له دې امله د ټولو لپاره بخوند او التذاذ منبع نه ګرځي.
اما همیشني او جاویداني شعر د ټولو انسانانو په آدرس ویلی کیږي او د شعر ذاتي
ارزښتونو څخه کار اخلي. په دغه ډول شعر کې هم مفکوره د بشریت له دایمي ارزښتونو
او پراخ هیومانیزم سره اړه لري. د زماني په اوږدو کې هر نسل ته احساس
او عواطف ور انتقالوي، عشق، ښکلا، سوله او دوستي، ایثار، زړه سوی
ګډ آرمانونه او داسې نور همیشني ارزښتونه د شعر بنسټ او محتوا
ساتي.

د شعر ذاتي ارزښتونه ښکلا، تخیل، تصویر، هنري ژبه، آهنګ،
احساس او جذبات دي. بهرني ارزښتونه باید شاعرانه شي له هنري
ورسته د شعر نوم ورباندې ایښودل کیدای شي.

# نثر او شعر

نثر په اصل کې عربي کلمه ده، په لغت کې شیندلو او تیتولو ته وايي اوپه اصطلاح کې هغه وینا ده چې وزن او قافیه نه لري. (۱)

دادب پېژندنې په اکثرو متونو کې نثر په دوه ډوله ویشل شوی دی:

۱- مرسل نثر، چې د وزن او قافیې له قید څخه آزاد وي.

۲- مسجع نثر، چې سجع پکې راغلې وي.

(فرهنگ ادبیات فارسی » د ( داکتر خانلری کیا ) تالیف په دې باره کې داسې لیکي : « نثر مرسل، نثری است که نویسنده در آن مقید به آوردن سجع یا صنایع لفظی دیگر نباشد.

نثر مسجع نثری است که نویسنده در آن مقید به آوردن سجع باشد. مثال از گلستان سعدی: « منت خدای را عزوجل که طاعتش موجب قربت است و به شکر اندرش مزید نعمت ».

په ځینو آثارو کې نثر په درو ډولو ویشل شوی دی: مرسل، مسجع او مرجز.

خو څرنګه چې په مرجز نثر کې له متوازنې سجعې څخه کار اخیستل کېږي ،
نوکېدای شي چې هغه هم د مسجع نثر یو ډول وګڼل شي . ځینې ادبپوهان مرجز
نثر ته موازنه یا مماثله هم وایي . د مسجع نثر د پېژندلو د پاره به د تسجیع په
باره کې یو څه یادونه وکړو :
تسجیع دې ته ویل کېږي چې په وینا کې سجع راوړله شي . دغې وینا ته مسجع
او مشابه جملو ته قرینه ویل کېږي . سجع په لغت کې د کوترې یا د ګوګوشتو (قمري)
د آواز په مانا راځي . په اصطلاح کې د قرینې د دوستیو کلمو ته چې په وزن یا د نګ
توري کې سره یو شانته وي سجع ویل کېږي . په قرآن کریم کې د سجعې په ځای
د فاصلې اصطلاح استعمالېږي چې جمع یې فواصل راځي .
سجع پر درو ډوله ده :
۱- متوازي چې په وزن او د وروستي توري کې سره یوشانته وي ، لکه (کال ، بال)
(مال ، کال) ، (جامه ، نامه) .
۲- مطرف چې الفاظ د روي په توري کې سره موافق وي او په وزن
کې مختلف وي ، لکه (دانه ، زمانه) ، (مل ، عمل) ، (شان ، نښان) .
۳- متوازن سجع چې د قرینې کلمې په وزن کې برابرې او د روي په
توري کې مختلفې لکه (پاک ، صاف) ، (شریف ، کریم) ، (کار ، کان) . (۲)
ځینو پښتنو لیکوالو سجع د قافیې په مانا اخیستې ده ، نو مسجع نثر ته
قافیه وال نثر ویلی دی . که څه هم متوازي سجع د جوړښت له مخې له قافیې
سره توپیر نه لري ، خو کله چې دغه ډول سجع په ناموزونه وینا کې راشي قافیه
نه بلل کېږي . که څېړې د سجعې نور ډولونه هم په حساب کې ونیسو او باید چې
ویې نیسو ، نو سجع او قافیه یو له بله توپیر لري ، سره له دې چې داخبره هم
باید په یاد ولرو چې په دري ژبه کې هم د مسجع شعر نمونې شته ، په پښتو ژبه کې

د مطرفې سجعې په اساس د بې نیات نظمونه موندل شو. د قافیې په برخه کې پښتو شعر وعربې اوډ دې ژبو له شعرونو سره یو شانته نه ښکاري .

د سجعې په برخه کې زموږ د دوهم ز یات توقف دلیل دا دی چې وروسته د نثر تر پېژند باید له آزاد شعر، سپین شعر ، ادبي ټوټې او منثورشعر سره تر بحث لاندې ونیول شي .

په انګرېزي ژبه کې نثر ته Prose وایي . د نثر اصطلاح ، د هغې په پراخ مفهوم سره پر هغو ټولیکنو او ګړنیو څرګندونو باندې تطبیقېږي چې منظمه آهنګواله بېلګه نه لري . کله چې په ادب پېژندنه کې د نثر په باب خبرې کوو نو هغه د ژبې هغې د نثر سره یو ځه توپیر لري . په ادبیاتو کې هر ډول ګډې وډې او تصادفي خبرې نثر نه بلل کېږي . ښه نثر یو ډول آهنګ لري ، په غوږونو خوږ لګېږي ، خو د هغه آهنګ تا کلی نظم او قاعده نه لري او له هغې امله له نظم Verse سره توپیر لري . د نثر آهنګ د متریک آوازونو تابع نه دی . ځینو ادب پېژندونکي د نثر ځانګړتیاوې په دې ډول ښودلې دي :

۱- نثر منظم او با قاعده آهنګ نه لري .

۲- په نثر کې ګرامري قاعدې او منطقي ارتباط ساتل کېږي .

۳- نثر سبک لري ، که څه هم د یولیکوال سبک به د بل له هغه سره یو شانته نه وي .

٤- نثر پر سیره پر ګرامري او منطقي قواعدو د فصاحت د اصولو پیروي هم کوي (۳)

هنري یا ادبي نثر د بدیعي مختصاتو په درلودلو سره له عادي نثر سره تفوق لري . د هغه یا دونه مو ځکه دې ته رابولي چې د نثر پر ډولونو باندې بحث وکړو .

لویدیځ ادب پېژندونکي په عنعنوي لحاظ نثر په څلورو ډولونو ویشي :

تشریحي ، توصیفي ، استدلالي او داستاني .

په ( انسایکلو پیډیا بریټانیکا ، ۱۹۷۲ کال ) کې نثر پر درو ډولونو ویشل

شوی دی : توصیفي ( دپېښو،خلکو، ځایو، شیانو ) تشریحي (یا توضیحي ) او هیجاني (یا احساساتي) .

د نثر دوه لونه معمولاً د انشاء ( لیکوالی ) دبحث په ترڅ کې تر څېړنې لاندې نیول کېږي. دلته دا یادونه هم ضروري ده چې پاسني دوه لونه په سره (خالص) شکل په ندرت سره لیدل شوي، خو بیا هم د اصلي او ضمني دوه ل ترمینځ په اسانۍ سره د بېلتانه کرښه ایستل کېدای شي .

د مثال په توګه په اکثرو داستانونو کې دکرکټر ، ځای او پېښو توصیف ځو او دلیکوال اصلي هدف داستان لیکنه ده ، نو موږ بعضاً اثرنثرته د استاني نثر وایو . او س به دنثر دوه لونه په لنډه توګه تعریف کړو :

## ۱- تشریحي نثر ( Expository ) :

دغه دوه ل نثر د تعریفونو ، جریانونو (پروسو) تعمیمونو، مفکورو او پر شیانو لمبیانونو سره اړه لري او له دې امله هیجاني او بدیعي اړخونه یې تقریباً د نشت برابر دی. له تشریحي نثر څخه زیاتره دعلمي تحلیل، ترکیب مقایسې او تصنیف د پاره کار اخیستل کېږي. ځینې یې توضیحي (Explanatory) نثر هم بولي .

## ۲-استدلالي نثر ( argumentative ) :

په داسې حال کې چې تشریحي نثر په عمده توګه یوه موضوع، یوه مفکوره یا تیم ( theme ) توضیح کوي * استدلالي نثر زیار باسي دمنطق او برهان په واسطه لوستونکی یا اورېدونکی دیوه تیس یا حکم په صحت یا بطلان قانع کړي. برهاني نثر د ذهني اقناع او عمل ته دهڅونې او پر یوه مفکوره دکړو هونې ( معتقدکولو ) د پاره پکار ېږي .

## ۳- توصیفي نثر ( Descriptive ):

په توصیفي نثر کې د حسي تجربې ( عاطفي ادراک ) موضوع په داسې توګه بیانیږي چې لیکونکی مقابل طرف ته خپل احساس انتقال کړي او په هغه کې عاطفي عکس العمل پیاوړی روي. توصیفي نثر یوه پیښه ، یوه منظره ، یو شخص ( یا خلک ) یا شیان د یو تاکلي هدف سره سم په ښکلو ، مشخصو او فصیحو الفاظو سره بیانوي.

## ٤- داستاني نثر ( narrative ):

په دغه ډول نثر کې خیالي یا واقعي پیښې د زمان او مکان په ترتیب سره بیانیږي. ساده داستاني نثر پیښې په کرونولوجیکي ډول سره بیانوي ، خو هغه نثر چې طرح ( Plot ) لري او د هنري پرنسیپونو په اساس لیکل شوي وي ، طرح لرونکی داستاني نثر بلل کیږي.

ویل کیږي چې د نثر هر ډول له یوه تاکلي هدف سره اړه لري. تشریحي نثر د معلوماتو له زیاتولو سره مرسته کوي. استدلالي نثر د یوه تیس د اثبات یا د چا د فکرونو او نظر د اړولو د پاره پکار یږي. توصیفي نثر د عاطفي او ایستیکي اړخ د ښکاره ولو د پاره یو کوښښ دی او داستاني نثر هم د تخیل د روښانولو او تفنن یا اخلاقي ښوونې په منظور لیکل کیږي.

د نثر هر ډول ځانته خپله ژبه او جلا سبک لري. د علمي - تحقیقي مسایلو د حل لپاره له تشریحي ( یا توضیحي ) نثر څخه کار اخیستل کیږي. او دا به ډیره مشکله وي چې مثلاً د کیمیا یا بیولوژي موضوعګانې په ادبي نثر ولیکو. همدارنګه په کوم ځای کې چې توصیفي نثر مناسب ښکاري هلته باید له تشریحي نثر څخه کار وانخلو. د مثال په توګه د لاندې دوې جملې سره پرتله کړئ باید دوئو یا مې ښوولي.

د ونو د ښور پدلو علت بادئ.

لوړه جمله په توصیفي نثر لیکل شوې ده، په داسې حال کې چې دوهمه جمله د تشریحي نثر په بڼه راغلې ده. که وروستنۍ جمله د یوې منظرې د توصیف د پاره استعمال شي د یکوالی د معیار ونو سره سمون نه لري.

فصیحه وینا هغه ده چې د حال مقتضیاتو سره مناسبه وي.

## نثر او شعر:

په ځینو وختونو کې د آزاد شعر او آهنګوال ادبي نثر خیمې ځنګ په ځنګ سره درېږي. نبایي د هر یوه ځبیمه معلومه وي، خو ننداړچي یې په تشخیص کې له ستونزو سره مخامخ کېږي. ددې لا نجې د سپیناوي د پاره به د «آزاد شعر» او «شاعرانه نثر» اصطلاحات توضیح کړو.

دیوناني فیلسوف ارسطو نه رانیولې تر ننه ورځې پورې عام تصور دا و چې هر نظم شعر نه بلل کېږي، ځکه د شعر اصلي جوهر خیال دی، نوکه په نظم کې ذهني انځور «ایماژ» او خیال نه وي د شعر حکم ورباندې نشي کېدای.
د منطق پوهانو په نظر، شعر مخیل کلام دی، وزن او قافیه یې لوازم دي.

دد غې منکورې پر بنسټ ځینو شاعرانو له وزن او قافیې څخه سترګې پټې کړې او داسې شعرونه یې وویل چې متریک (تقریبًا بیا عروضي) وزنونه او قافیې یې نه درلودل. په انګرېزي کې د غه ډول شعر ته ( Free Ver se ) او په فرانسوي کې ( Vers Lib re ) وایي چې اصلي مانایې (آزاد نظم) دی، خو زمونږ ادیبان یې د «آزاد شعر» په نامه یادوي.

آزاد شعر متر ( یعنې د نظم په کرښه کې آهنګواله بیکه ) او قافیه نه لري(٤) په فرانسه کې (ویکتور هوګو) د نظم زاړه قیود لیرې کړل. په جرمني کې نوالیس ( د شپې په ملح ) کې سندرې وویلې، خو په (١٨٠١) کې د نثر په بڼه

چاپ کړې . له دې نه مخکې د (میک فرسن) نظمونه چې (د اوسیان نظمونه) نومېږي په آهنګوال نثر ویل شوي وو. په ۱۸۳۶م کال کې (الیوسیوس بونتاند) منثور نظمونه ویلي وو او د فرانسې نامتو شاعر (شارل بودلر) د هغه پیروي وکړه . د امریکې په متحده ایالتونو کې نامتو شاعر (والټ - وایټمن) خپل اثر (د وښو پاڼې) په آزاد شعر ولیکه . (هاینریش هاینه) مشهور جرمني شاعر (شمالي بحیره) په آزاد شعر وویله . په دې لړ کې (هېنلي)، (ماېتواېرنولډ)، (امی لوویل د پولي فونیک شعر نوښتګره) او (ستیفن کرین) نوموړ دیادونې وړ دي . (۵)

آزاد شعر مخالفان او مدافعان لري . په هر صورت د غرپول شعر شته او د دغه شعر نوم د نړۍ د ډېرو سترو شاعرانو : هوګو، وایټمن، هاینه له نومونو سره تړل شوی دی او دا د بیاتو په قاموسونو کې هم د آزاد شعر اصطلاح منل شوې ده .

- ځینو ادب پېژندونکو په نظر د آزاد شعر او ادبي نثر ترمینځ توپیر د تخیل، شعري لوازمو، او بدیعي مختصاتو په اساس ممکن دی . د (الیوت) په عقیده د هرډول آزاد شعر ترشا دیو ډول آهنګ شبح شته . په عمده توګه آزاد شعر د میخانیکي کېدو پرضد اعتراض دی . داسې هم ویل کېږي چې وزن د مادي شیانو او د شعر ذاتي توک نه دی . اما په دې صورت کې د شاعرانه نثر ( Poetic Prose ) او منثور شعر تر مینځ زیات ورته والی لیدل کېږي . ځینې ادب پېژندونکي وايي چې د دواړو تر مینځ توپیر د نوښتګر لیکوال په قصد او اراده پورې اړه لري . د ځینې نورو په عقیده په منثور یا آزاد شعر کې د آهنګ ونډه زیاته ده . اما د دواړو ډولونو ترمینځ د توپیر معیار شعریت دی .

څرنګه چې په آزاد شعر کې فني او ظاهري خصایص نشته او که وي هم د نظم په اندازه نه دی ، نو باید د شعر د پېژندلو د پاره د شعر معنوي عناصر وپېژنو . د شعر معنوي عناصر عاطفه ، مفکوره او تخیل دي . د تخییل ( ایماژ، ذهني انځور ) عمده لوازم تشبیه ، مجاز کنایه او استعاره دي . هرڅومره چې په نثر کې د تخیل برخه زیاته وي په همغه تناسب یې شعریت هم زیات دی . سربېره پر دې آزاد شعر د شاعرانه نثر په نسبت یو ډول آهنګ لري ، که څه هم دغه آهنګ به متریک نه وي .

د دې بحث د نغاړلو نه مخکې به د "سپین شعر" اصطلاح هم توضیح کړو ځکه چې زموږ ځینې لیکوال آزاد شعر او سپین شعر په عین مفهوم استعمالوي . سپین شعر په انګرېزي کې د ( Blank verse ) یعنې سپین ، (خالي - تش ) نظم په نامه یادېږي . د سپین شعر مفکوره د هیومانیزم - ( څوارلسمه - شپاړسمه پېړۍ ) د نهضت نه اغېز لاندې ایجاد شوه . هیومانستانو به ویل چې کلاسیک شعر قافیه نه درلوده . په انګرېزي ژبه کې سپین شعر د لس څپه ییزو بې قافیو مسریو څخه جوړ شوی دی ، چې دوهمه ، څلورمه ، شپږمه ، اتمه او لسمه څپه یې خنجونه ( اکسنتونه ) لري . دغه ډول شعر له ډرامې سره جوړ دی ، خو داستاني او فلسفي موضوعګانې هم پکې بیان شوي دي . ویل کېږي چې د سپین شعر ویل زیات مهارت او قریحه غواړي . که څه هم سپین شعر قافیه نه لري ، خو په عوض کې یې یو لړ نور ادبي صنایع استعمالېږي .

وایي چې د سپین شعر لومړنی ویونکی ( Surrey ) دی . په لومړیو وختو کې دغه ډول شعر ډرامې ته وقف شوی و ( میلټن ) صفه په

اپیک شعر وایاوه ، کله چې سپین شعر دنا بعه ډراماتیت (شکسپیر) پهلاس وړی نو سپین شعر د ممتاز شعر په توګه ومنل شو . د سپین شعر تر ټولو ستر استاني : شکسپیر ، میلټن ، وردز ورث ، کیټس ، شیلي ، ټینیسن ، براونینګ ، سوین برن او نور دي . انګریزي ادبي هانو محاسبه کړې ده چې سپین شعر په مجموع کې د انګریزي شعر دري څلورمه برخه تشکیلوي .

په دې ورو ستیو وختونو کې ځینې ادبي کره کتونکي سپین شعر په پراخ مفهوم استعمالوي او هر هغه شعر ته چې متریک بې قافیې شکل ولري ، سپین شعر وایي . په دې اساس هغوی آزاد شعر د سپین شعر په نامه یادوي .

د پښتو ادبیاتو یو نامتو مؤرخ لیکي : « آزاد یا هغه چې سپین شعرونه او بې قافیې شعرونه هم ورته وایي او ځینې کسان یې « نوي شعرونه » هم بولي په ختیځ ادب کې نوې پدیده ده . په پښتو کې هم د آزادو شعرونو دودیدل دورو ستو نیمې پېړۍ سوغات دی . (٦)

د سپین شعر ، آزاد شعر او نوي شعر ترمینځ د توپیرونو په باره کې بحث کول زمونږ اصلي موضوع نه ده ، خو دومره یا دونه پکار ده چې آزاد شعر د یوې ځله وزن او قافیه نه لري او له همدې امله هغه ته منثور شعر ویل شو . اما سپین شعر د نظم په حساب دی او ډول آهنګ درلودونکی دی .

دا د ادبي څېړنو یو عام پرابلم دی چې د اصطلاحاتو په برخه کې د ادبپوهانو ترمینځ عمومي موافقه (Consensus) نه لیدله کېږي . (لکه د ادب ، شعر ، نثر ، ژانر ، ریالیزم ، سبک ، مکتب او داسې نورو اصطلاحاتو په باره کې) او له دې امله په دغه برخه کې د سم او ناسم حکم هم په اسانۍ سره نه شي کېدای .

دا د بیاتو په ازموینه (امتحان) کې د ابجکټیف آزموینې شکل سره نتیجه نه ورکوي

بهتره داده چې دیوې اصطلاح په تعریف کې محصل (یا ازموینې ورکوونکی)
ته فرصت ورکړه شي چې اصطلاح په خپله تعریف کړي. او د تعریف د
انتخاب یا سم کڼلو دلایل په مفصله توګه بیان کړي. په دې صورت کې
دا نیا په دپاره سپه امکانات تر لاسه کېږي.

## دپښتو نثر دمتونو انتخاب او پېژندود :

که موږ د پښتو نثر متون یا د لوړو ټولګیو د لوست کتابونه د تصنیف
له پلوه وڅېړو، په ځینو کې هیڅ دول سیستم نه لیدل کېږي، او که وي هم
خپل ځان ته شي بنودلی.

د نثر د متونو د لیکلو دپاره باید تر هرڅه دمخه هدف و ټاکل شي.
د هدف په ټاکنه کې د ټولنې اړتیاوې، د زده کوونکو اړتیاوې او د
دسپلین ( درسي مضمون اختصاصي ځانګې ) اړتیاوې په پام کې نیول کېږي.
د ټولنې داړ تیاوو په جمله کې هر ډول پو مشترک ارزښت شته چې هغه
د فرهنګ انکشاف او تعمیم دی. د اختصاصي ځانګو په اړتیاوو کې د
عمده مقولو پېژندنه او متقابل اړیکي غوره پر نسیونه او له ټولو سره
د هماغو پر نسیپونو اړیکي او د هماغه ځانګې تاریخي او دوړ نمایي انکشاف
شامل دي. د زده کوونکو اړتیاوې په هماغه ځانګه کې د معلوماتو -
زیاتوالی، دمقولو او پرنسیپونو سره اشنایي، د څېړنې او ارزیابي
میتود، د مهارتونو پر مختیا، د انګېرنې ( طرز تلقي ) او سلوک بدلون
او د پرابلمونو د حل د پاره د زده کوونکو د استعدادونو روزنه او داسې
نورې اړتیاوې دي.

د پښتو نثر د متونو په برنډ ( انتخاب ) کې ځینې ادبپوهان د کلاسیک
متونو انتخاب ته تمایل لري او هدف یې دادی چې د شکلو ترکیبونو ،

اصطلاحاتو او لغتونو په حل کولو سره لوستونکي له پخوانيو متونو سره اشنا کړي
څيني يوازې د هنري نثر پرتمينې بېلګې انتخابوي څويه دي وسيله لوستونکي
له هنري سبکلاوو او بديعي يا فني مختصاتو سره پېژندګلوي پيدا کړي او ادبي ذوق
يې لوړې سطحې ته پورته شي. د ځينو نورو په نظر د نثر متون بايد د هرې
ادبي دورې د خصوصياتو هينداره وي او له همدې امله متون پېژندونکي په
تاريخي لحاظ د هرې دورې ټيپيک متونه انتخابوي. په دغه کټګورۍ کې بنايي
ځيني داسې نثرونه هم وسرل شي چې هنري ارزښت يې لږ وي، خو دېوې
تاريخي دورې ادبي خصوصيات پکې منعکس شوي وي.

تر اوسه پورې د نثر د متونو تهيه کوونکي د متني له مخې يوازې د
لغتونو په حل کولو او د څو متحد الشکله کليشه يي تبصرو په ليکلو بسنه کوي.
د مثال په توګه دوی ليکي چې دغه نثر روان يا مغلق دی، دخيلې کلمې پکې
زياتې يا کمې دي، نثر مسجع يا مرسل دی، او تقريباً همدومره.

په دې ځای کې بايد د ياد ونه وکړو چې د نثر متون د نثر له تاريخ سره
نه بېلېږي، ځکه چې د نثر تاريخ په سيستماتيک ډول د نثر د تطور عوامل، او
له اقتصادي، اجتماعي شرايطو او د فرهنګي سنتونو سره په ارتباط کې د
هرې ادبي دورې د فکري بهيرونو، ادبي سبکونو، ايستيتيکي نورمونو
او د ښه پوهېدو ښتونو څرنګوالی څېړي او له نورو دورو سره يې پرتله کوي.
د نثر متون د غو اړخونو ته په ځغلنده او عبوري نظر کولو اړتيا تفصيل
نه ورکوي.

په لوېديځ کې هم د نثرونو تهيه کوونکي له بېلا بېلو معيارونو څخه کار اخلي، خو
په هرصورت کې دوی په کار کې غالباً يو ټاکلی هدف او سيستم ليدل کېږي. ځيني
ادبپوهان د نثر په متونو کې لنډې کيسې ځای ورکوي او هغو ته د جلا ژانر په توګه ځای ورکړي

اوزښت نه ورکوي . ځینې متن پېژندونکي د نثر متون د تاریخي ادبي دورو یا
ادبي مکتبونو ( لکه کلاسیسېزم ، رومانتېزم ، ناتورالېزم ، ریالېزم او نورو ) په
اساس کتاب په څو پاړکو ویشي . د هر پاړکي په سر کې یې سریزه یا پېژندګلوي
لیکي چې په هغه کې د هماغې ادبي دورې یا ادبي مکتب خصوصیات او د منفردو لیکوالو
د سبک ځانګړتیاوې بیانوي او وروسته یې څو مهمې بېلګې راوړي .

په یو نامتو کتاب کې چې (An Introduction to Literture) نومېږي
ادبیات په څلورو برخو ویشل شوي دي : لنډه کیسه ، ډرامه ، شعر او نثر.
هره برخه د یو متخصص له خوا تهیه شوې ده . د هرې برخې په سر کې هماغه
ادبي ژانر ( مثلاً لنډه کیسه ) په تفصیل سره معرفي شوې ده . وروسته د نامتو
لیکوالو ( یا شاعرانو ) آثار راغلي دي ، په لاندې ځایونو کې تبصرې یا نقدونه
ورباندې لیکل شوي دي . د نثر برخه ( والاس ډوګلاس ) ته سپارل شوې ده
( د نثر د مشخصاتو تر سرلیک لاندې د نثر او لیکوال په باب مفصل بیان
راغلی دی . وروسته د لیکوال په باره کې د نامتو ادیبانو مقالې راوړل شوې
دي . بیا د نثر څو مختلفې بېلګې راوړل شوې دي . وروسته د اتو بیوګرافۍ ،
معلوماتي مقالې ، انتقادي مقالې ، استدلال ، د سبکونو سطحې او طنز ته
ورته لیکنې تر سرلیک لاندې د نړۍ د نامتو لیکوالو مقالې راغلې دي.

د دغې چاپونې مقصد دا دی چې مدون زیار ایستلی دی د نثر له خزانې
څخه هر ډول غني او قیمتي مواد راټول کړي .

په ځینو نورو آثارو کې د نثر د تصنیف د پاره هماغه څلور ډولونه
تشریحي ( توضیحي ) ، توصیفي ، داستاني او استدلالي د معیار په توګه تامل شوي.

د پښتو نثر د متونو په خوښونه او ټاکنه کې باید د دغې ژبې ځانګړنه په حساب
کې ونیوله شي ، خو دا خبره څرګنده ده چې د نثر د متونو هدف توصیفي

او داستاني نثرونه دي . او ځینې استدلالي نثرونه چې هنري ارزښت ولري، د
نثر په متونو کې راتلای شي . ځینې کسان د نثر د متونو په ارزیابۍ کې
ژبنی جوړښت څېړي . په داسې حال کې چې د نثر د متونو د مطالبو عمده صفات
د بدیعي او هنري ځانګړتیاوو ښودنه او څرګندونه ده . په دې کې شک
نشته چې ادبیات یو ژبنی هنر دی له دې امله په ادبي څېړنو کې ژبه هم تر
بحث لاندې نیول کېږي خو په دې تفاوت چې د نثر ژبه د یو هنري اثر په
توګه د فصاحت او بلاغت د اصولو په اساس څېړل کېږي او له ژبپوهنیزو
څېړنو سره جوت توپیر لري . یعنې په ادبي متن کې باید د ژبې هنري اغېز
په پام کې و نیول شي او باید هغه چاپېریال او شرایط په پوره توګه روښانه
شي چې ټاکلی هنري نثر د هغو په غېږ کې پاللی شوی او روزل شوی دی.

## مأخذونه او توضیحات

(۱) فرهنگ عمید (اووم چاپ ۱۳۵۳ ش کال) په دې باره کې داسې لیکي:
نثر - ع (به فتح نون) پراگنده کردن، پراگنده، کلام غیر منظوم خلاف نظم.

فرهنگ آنندراج (تالیف محمد بادشاه، متخلص به شاد، زیر نظر محمد
دبیر سیاقي) د نثر مانا داسې راوړې ده :

نثر - بالفتح و رای مهمله، ع پراگنده و سخن پاشیده و پراگنده کردن
و سخن بسیار گفتن و فرزند بسیار آوردن و بینی افشاندن و نثره انداختن از تن مرد
و کلام نثر که آنرا انشاء گویند.

فرهنگ ادبیات پارسی (دکتر زهرای خانلری کیا، ۱۳۴۸ کال) نثر په دې توګه تعریف
کړی ګ: نثر در لغت به معنای پراگندن و در اصطلاح کلامی است که مقید وزن و قافیه نباشد.

(۲) جلال الدين همائي، فنون بلاغت وصناعات ادبي، جلد اول، انتشارات دانشگاه سپاهيان انقلاب، تهران، ۱۳۵٤، مثالونه يې ددغې مقالې ليکونکي پيدا کړي.

(3) Willam F. Thrall et al. A Hand book to Literature. The odyssey press. N.Y. 1960. p. 382.

(*) تيم په لغت کې د بحث يا خبرو موضوع ته ويل کېږي. په ادبياتو کې مرکزي يا حاکمه مفکوره د تيم په نامه يادېږي. او په علمي آثارو کې تقريباً د تېيسس (تېزس) سره مترادفه ده. په شعر، داستان او ډرامه کې تيم هغه مجرد مفهوم يا ايډيا ده چې د شخص په وجود، عمل يا پېښه کې تبلور مومي او مشخصه کېږي.

(4) Joseph T. Shipley. Dictionary. of World literature. philosophical Library. N.Y. 1953. p. 172

(5) Ibid, p. 172

(*) پښتو ژبه په عمده توګه په خپل عروضي سيستم کې له اروپايي ژبو سره ورته والی لري، ځکه د عروضي کلمې پر ځای (متريک) غوره بريښي. د دغې موضوع تفصيل جلا بحث غواړي.

(٦) «د پښتو نثري ادب» بريښنا، د افغان ياد، کابل پوهنتون، ۱۳٦۰ کال، مخ ٦٨.

# شعر او د نوښت مسأله




دوه کاله مخکې، د درسي لکچر نوټ د تهیه کولو دپاره د ادبي اصطلاحاتو په قاموسونو پسې گرځېدم. د شعر د تعریف دپاره مې ډېر کتابونه ولټول. کوم تعریفونه چې زما په ذوق برابر وو هغه مې د یادښت په کتابچه کې ولیکل. د شعر د تعریفونو په لړ کې یو ځای مطلق شعر هم تعریف کړی و. له ځانه سره مې وویل مطلق شعر هیڅ معنا نه لري، ځکه چې هر شعر د زمان او مکان له شرایطو سره اړه لري، د خپل وخت د پېښو او فرهنګي جریانونو انعکاس پکې لیدل کېږي او له دې امله هر شعر نسبي او په کلتور پورې تړلی دی.

څه موده وروسته متوجه شوم چې د نسبي په مقابل کې د مطلق لفظ راغلی دی. آیا د شعر په قلمرو کې د مطلق لپاره هیڅ جواز نشته؟ آیا داسې شعر نه شو موندلی چې په هر وخت او هر ځای کې خلکو ته منلی وي، زړښت ونه لري او هنري ارزښت یې تلپاتې وي؟

هو! ولې نه! د ادبي اصطلاحاتو په قاموس کې هغو آثارو ته چې په هر وخت او هر ځای کې لوستونکي لري او خلک یې په مینه او خوند لولي کلاسیک آثار ویل کېږي. نو مطلق شعر په اصل کې کلاسیک شعر دی، هر

د اکثرو خلکو په ذهن کې کلاسیک شعر د معاصر شعر په مقابل کې تداعي

کېږي او داسې تصور کوي چې معاصر شعر ته کلاسیک شعر نشو ویلای.

ځینې ادبپوهان د معاصر کلاسیک شعر اصطلاح هم استعمالوي په دې معنا

چې د اوسني وخت و تلي او منلي شعرونه معاصر کلاسیک اشعار ګڼل کېدای

شي . ځینې نور د اخبره د تامل وړ ګڼي او داسې استدلال کوي چې بنایي

معاصر شعر د ورځې شعر وي ، د خپل وخت له شرایطو سره متناسب وي،

زیات مینه وال هم ولري ، خو له دې ټولو سره فصلي او موسمي شعر

وي . د اډول شعرونه چې د ورځنیو اقتضاآتو په زمینه کې د ګډو د بوټو

په شان را لوېږي او د خنار سره خېژي ، له هغو شعرونو سره چې د ځنار په

شان په خپل مکان مستقیم دي ، جوت توپیر لري . «ګډوي شعرونه» د

«ځناري شعرونو » په خلاف ، ژور ريښه او زیات عمر نه لري .

نو دا ډول شعرونه چې دوام نه لري په یو تاکلي مقطع کې رامنځته کېږي

او د موسم په بدلېدو سره بېرته مړاوي کېږي، نسبي شعرونه دي .

مطلق او تلپاتې شعر ته هر څه د مخه هنري او ایستیکي ارزښت لري .

دا یې ذاتي معیار دی . د دې احتمال هم شته چې د شعر سوژه هم د

شعر له پایښت سره مرسته وکړي . خو سوژه په هر صورت بهرنی معیار

دی او هیڅکله د هنري توب ځای نه شي نیولی . همغه یوه سوژه بنا یې

دیو زیات شمېر لیکوالو او شاعرانو په آثارو کې رونل شوې وي ، اما په خپله

سوژه د یوهنري اثر ارزښت او بداعت نشي ټاکلی . له همدې لامله

مطلق شعر مستقل دی . پر خپل هنریت تکیه کوي ، پخپله غایت دی، یوازې

د هغه په میزان تلل کېږي .

یو زیات شمېر ادبي کره کتونکي د دې خبرې له او ربېدو وخته چې « شعر پخپله

غایه ده »، سخته نارضایتي څرګندوي. په اخلاقي لحاظ ددوی نارضایتي دتوجیه وړځکه ده چې په یوه عنعنوي او وروسته پاتې ټولنه کې، چې جګړه، بېسوادي او له مغو ځخه رازېږ بېدلې خپګې د خلکو پر ستوني فشار راوړي، شاعر او لیکوال څنګه کولی شي د عاج په خیالي ماڼۍ کې خپل ځان له اضطراب او تشویش ځخه خلاص کړي؟

شاعر تر هرڅه زیات نرم او حساس زړه لري، له عواطفو ځخه لېرې کېدل د شاعر له پاره د مړینې حکم لري. شعر د تخیل او عاطفې بچی دی، له دغو دواړو ځخه چې یو کم شي شعر یتیم پاتې کېږي.

دا خبره سمه او په ځای دي، خو د دې خبرې معنا دانه ده چې شاعر دې فصلي او موسمي شعرونه وايي او څوک چې ده ته د بارومتر (فشارسنج) لقب ورکوي نو دی دې هم له فشار سره بنکته پورته کېږي، له ځانه دې څه نه لري او د نورو وجینې دې تفسیروي. نو دې د یوه او سبا دې د بل مدح وايي او د (الحق لمن غلب) تر چتر لاندې دې وخت تېروي.

تر ټولو بده یې دا چې ادبي کره کتونکي د لارښوونې په بهانه شاعر ابتذال او سطحي توب ته راکشوي، دوی چې شعارونه ورته دیکته کوي او نه یې پر پرېږدي چې په خپله خوښه د خپل وجدان غږ پورته کړي.

هیڅ ډول لارښوونې ته ضرورت نشته، شاعر په هر صورت متعهد او هیوادمنست دی، حتی هغه وخت چې د ګل او بلبل ستاینه کوي او د بنګلا او مینې نغمې غږوي. آیا مینه او بنکلا د ژوند چاشنې نه ده؟ دا څوک دی چې شاعر د ګل او بلبل، او د ځنسان او کاکل له خبرو

منع کوي؟ له بده مرغه کړه کتونکی . نو آیا کره کتونکی نړه نه لري ، یوازې دګبډوي غم ورسره دی؟ آیا دې له «ګل کرم» نه پرته بل ګل په رسمیت نه پېژني؟

کله کله په شاعر باندې داسې حالات هم راځي چې دادبي کره کتونکي له دیکتات او دستورونو څخه یې ماغزه اشباع شي ، نور نو دغه او دېر لږو له پاره ځای نه وي پاتې ، له یکنواخته او کلیشه یي خبرو څخه ستړی شي، په دغه حالت کې د شاعر احساسات طغیان کوي ، اخلاق او منطق صفحه چا ته پرېږدي چې ورپسې ګرځي ، ناصح ته نور غوږ نه نیسي ، دخپل زړه په خوښه ګام ږدی ، په بې لاره روانېږي ، په کنډوالو او ښارو میږوکې له ابې شو یو ککړیو سره دزړه خواله کوي ، د دنیوي زخارفو پرسرد خلکو پر ځای وهوی او دهلو ټکولو باندې خندا ورځي ، د ژړګیږ میږو او ژړاوو له کلیو څخه د جنون دښتې ته پناوړي او د مجنون په څېر خپل ټول غمونه دلیلا په سترګو کې هیرړوي .

څه کم دوه نیم کاله مخکې چا ویلي وو چې شعر دغموښو باب سپکوي او دغم ځپلي انسان دپاره ډېره ښه پناګاه ده . شعر دهغې ګوربډ وني په شان دی چې ګرمي وهلي مسافر یې سیوري ته کېني .

شاعر غیر عادي خبرې کوې چې د محاورې له سویې پورته دي . هغه په دغه غیر عادي او ساحرانه خبرو زموږ ذهن تسخیر وي ، د مبتذلو ژوند له محدود او کلیشه یي چوکاټ څخه مو را باسي ، یو شیبه مو د رنګونو او خیالونو جهان ته بیایي . دده له عینکو څخه جهان او خوا دشت بل ډول ښکاري . نه پوهېږو چې دی څه وایي او که یې نه وایي ، خو هرڅه چې وایي ښکلي یې وایي . دده په ویناکې یو ډول آهنګ او زمزمه احساسېږي . دی په ښکلا

مين دی ، په ژوند کې خوند غواړي ، په خوند کې تنوع غواړی ، په تنوع کې نوښت غواړي ، په نوښت کې ښایست غواړي ....

* * *

د غه مقالیه پینځو شعر کې د نوښت مسألې ته وقف شوی ده.

په دی کې شک نشته چې د نوښت په برخه کې هم مختلفې نظریې شته. په یوه لحاظ خو کائنات د ستر کو په رپ کې نوي کېږي او په هغه غوړه لږ وخت کې د شیانو ځای ، د وقوع شېبه او له نورو شیانو سره روابط تغیر کوي . سره له دې موږ د هرې شیبې تغیر ته نوښت نه وایو. موږ دغه نوښت نه ژ بربت هم ویلی شو. یعنې هرشی چې نوی کېږي نه یې ښېنې وایې چې موږ فقط هغه څه نوی بولو چې ضروري وي . اما پوښتنه دا ده چې ضروري به څنګه وپېژنو ؟ په هره زمانه کې خلک ضروری پیښې ضروری بولي ، خو وروسته معلومه شي چې هماغو مره ضروري هم نه وې . په پرو پخوانیو جبارانو خپلې غوښتنې د تاریخ جبر ګڼلې دي ، خو دا مې سکاري چې تاریخ د افرادو د ارادې او غوښتنې تابع نه دی .

که موږ د شعر نوښت له هنري نوښت سره په ارتباط کې وڅېړو نو دا دې کره کتنې کار به مو اسانه کړی وي . هنري نوښت که له یوه خوا د ټولنیزو شرایطو سره نه شلېدونکې اړیکې لري له بلې خوا د هغو شرایطو اسارت هم نه مني ، بلکې خپل نسبي استقلال ساتي . دد ې امکان شته چې د ټولنیز تګ د یو وخت کې د ې د شعر او ادب په بڼ کې تازه او رنګین سېکونه وغوړېږي او بالعکس په بسیا ټولنه کې د ې د شعر ګلبوټي لازمه وده ونه کړي .

د مثال په توګه په سراجیه دوره کې د اماني دورې په نسبت د

شعر او ادب بډ ه غني دی، حتی هغه شاعران چې په نادره شرایطو کې خپل غږ پورته کوي په مناسبو شرایطو کې چوپتیا غوره کوي او له شعر ویلو نه لاس اخلي. موږ نه یو هیښ شوي چې په کوم وخت کې به ستر شاعران وزیږي، پیغوراني خلک هم په دې رمز نه پوهیدل، دا ځکه چې ځینې ستر شاعران له کنډوالو نه راغلي دي او ځینې له ښکلیو ماڼیو، ځینې شاعران د بحران بچیان دي او ځینې د رفاه او پریمانۍ. ځینې په بدبختۍ کې قانع او خوشبینه وي او ځینې په تنعم کې ناراضه او بدبینه، ځینې مطیع او ارام دي او ځینې عصیانګر او سرکشه، ځینې عالمان دي خو ښه شعر نه شي ویلای او ځینې بې سواده دي مګر خوږ او له سوز نه ډک شعرونه وایي.

د شاعر د پیژندلو د پاره میخانیکي توجیهات څه کټه نه لري. کوم خاص معیار نشته چې له یوه شخص نه دې شاعر جوړ کړي. وراثت چاپیریال، بدني جوړښت، ارادي حالات، ټولنیز-اقتصادي موقف، مبتونه او روزنه دا هیڅ یو د شاعر کیدلو د پاره حتمي شرط یا معیار نه دی؟

اوس به له شاعر نه شعر ته ورتیر شو، البته زموږ د بحث موضوع نوی شعر دی. ډیر کسان فکر کوي چې نوی شعر هغه شعر دی چې محتوا یې نوې وي او له محتوی څخه د دوی مراد مفکوره یا پیغام دی. دا خبره د ردولو وړ نه ده، لیکن اساسي اهمیت نه لري. په دې شک نشته چې په هر ډول شعر کې یوه مفکوره شته، خو کوم شی چې له شعر نه شعر جوړوي پخپله مفکوره یا ایډیا نه ده. مفکوره په عادي یا مرسل نثر هم بیانیدای شي. له سایمنس نه د هنر تو پیر په دې کې

دی چې دساینس دپاره مفکوره او واقعیت اساسي اهمیت لري، اما دهنر دپاره دمفکورې دتصویرولو او تمثیلولو طرز او شکل خاص اهمیت لري. حتی کېدای شي چې هنرمند په تېره شاعر اصلاً واقعیت انځور نه کړي، حتی کېدای شي چې د شاعر خبره غیر عقلاني وي خو سره له دې په زړونو خوږې و لګېږي. کوم شی چې دشعر ارزښت تاکي هغه تخیل، عاطفه، ښکلا، احساس او آهنګ دی. که په شعر کې علمي، فلسفي او اخلاقي افکار بیان شي دې ته مونږ (نورعلی نور) وایو. اما دشعر ارزښت له تخیل، ښکلا، آهنګ او داحساس له انتقال سره اړه لري او دغه توکونه یې دهنریت درجه ټاکي.

تاسو دالاندې دوه بیتونه سره مقایسه کړئ:

خط پرمخ دصنم راغی که سپوږمۍ شوه په هاله کې
دا یې غاښ په خوله کې زېب کاکه ژاله شوه په لاله کې

بل بیت ـــ

چې تربیت دیتیم کړینه        د پر ثواب کعبه لرینه

په اخلاقي لحاظ دوهم بیت تر لومړي بیت ډېر ښه دی، مګر د شعریت له پلوه لومړی بیت ډېر ارزښت لري او دوهم یې نه لري. نو اخلاقیات دشعر ښه والی نه شي تضمین کولی، اما بالعکس شعر کولی شي چې داخلاقي تعلیماتو داغېزمن کولو او تبلیغولو په لاره کې ستر خدمت وکړي. اجتماعي مصلحانو، دیني مبلغانو، سیاسي لارښوونکو او اېډیالوجستانو دشعر له ساحرانه تاثیر او ژورې اغېزې څخه په استفادې سره خپل هدفونه په مؤثره توګه ترسره کړي دي.

دا ډېر ښه کار دی چې شعر دیوه سپېڅلي آرمان او بشر دوستانه

پیغام دپاره په کار واچول شي. خو هغه شعر چې یوازې دیوې مذهبي فرقې، یوه پولنیز قشر یا صنف یا دیوې تاکلې طبقې دمفکورې او عقایدو خپرولو ته وقف شوی وي د ټولو دپاره مقبول شعر نشي کېدای. هغه وخت چې یو اخ هیوما نستي پیغام ولري، ټولو زړونو ته لار پیدا کولی شي. شعر چې دهرې سوژې په باره کې وي، د خلکو دپاره ویل کېږي. داخبره سمه نه ده چې دعوامو تفنن، ټوکې، ټنګ ټکور او ساعت تېری نه خوښېږي او یا دوی ورته ضرورت نه لري. هنر په ژوندکې خوند پیدا کوي او بې خوندي ژوند بې اند بنه کوي.

که ترڅو دې ځایه پا دغه لیکنه لوستې وي، نو باور لرم چې هرومرو به یې له ځانه سره ویلي وي: « داخبرې د شعر له نوبښت سره څه اړه لري؟ دوهم دا چې دلته ځینې خبرې بې ضرورته ویلې شوې دي؛ کمه یې څه ده؟ »

که دغه ډول انتقاد دچاپه فکر کې ګرځي نو زما ځواب دا دی چې دلته ټول او سه پورې د قلم څوکه د خنجر په بڼه ښکاره شوې او د « شعری که خنجر است » مجموعه خپره شوې. زه غواړم دا ووایم چې شعر خنجر نه دی، بلکې ملهم دی.

زه غواړم دا ووایم چې که له شعر څخه د خوند او تفنن له پاره استفاده وشي او یا د غمونو بار سپک کړي، ادبي کره کتونکي تر نه ښایي چې دغه ډول شعر محکوم کړي او فوراً ټاپه ور باندې ووهي. زه غواړم دوایم چې ادبي کره کتونکي دې له تهدید او شانتاژ نه صرف نظر وکړي، د شعر او شاعر خپلواکي ته دې په درنه سترګه وګوري. زما په فکر د ادبي کره کتونکي پیا ملرنه باید دې خواته راواړول شي.

# دشاعر قلمرو

ادب پخپله کوم هدف نه لري، بلکې دا انسان دی چې دادب له
میډیم (رسیلې) څخه په استفادې سره خپل هدف څرګند وي. اما ددې
خبرې مانا دانه ده چې ادب به همېشه وسیله وي. کله کله وسیله په غایه
بدلېږي. دمثال په توګه پیسې یوه وسیله ده، خوبیوشمېر خلک په پیسو
مین وي، پیسې راټولوي اما خپل ژوند په خوارۍ تېروي. تاسو به
دځینو ملیونرانو دژوند قصې اورېدلې وي چې ډیر عادي شخص
په سویه ژوند کوي او کله کله حتی له عادي شخص نه هم په ټیټه سویه
ژوند تېروي. په همدې ترتیب علم دژوند له پاره دی، خو دداسې
عالمانو شمېر لږ نه دی چې ځانونه یې علم ته وقف کړي وي او دعلمي
حقایقو دڅرګندولو له پاره له ځانه تېر شوي دي. دا دعلم قربانیانو
له مال او دولت نه دعلم سره زیاته مینه درلوده او علم یې دعلم له پاره
غوښت.

همدارنګه موږ پوهېږو چې داخلاقو هدف ښه او خوشحاله ژوند دی.

یا په بله ژبه اخلاق د بنه ژوند له پاره یوه وسیله ده، خو یوازیات شمیر انسانانو مادي گټې تر پښو لاندې کړې دي او اخلاقي ارزښتونه یې د سر په بیه ساتلي دي. دغو کسانو وسیله په هدف بدله کړې ده د اخلاقي وجیبې د اداء کولو له پاره یې خپلې مادي گټې له لاسه ورکړې دي.

دغه پورتنۍ خبرې د ادب (هنري ادبیاتو) په برخه کې هم صدق کوي. یو شمیر لیکوالو او شاعرانو د تاریخ په یوه ټاکلې مقطع کې د (شعر د شعر له پاره) شعار وړاندې کړ. دا هغه زمانه ده چې شاعر او لیکوال له حاکمې طبقې سره مقاطعه کوي او د هغې منفعت پرستۍ، اپورتونیسم او چالاکۍ ته په سپکه سترگه گوري او غواړي چې شعر او ادب آزاد کړي او یوازې د هنري ذوق د اقناع له پاره یې بکار واچوي.

د ایډیالوجۍ په باره کې هم دغسې حکم کولای شو. شایي چې یوه ایډیالوجي په اصل کې د خلکو د نیکمرغۍ او سوکالۍ له پاره وضع شوې وي مگر د زمانې په تیریدو سره یې خپل اصلي هدف هېر کړی وي. په ړانده تعبد، وچ تعصب او قشري نصوصو بدله شوې وي. هغه وخت چې ایډیالوجي خپل جوهر، انساني محتوی او خپل روح له لاسه ورکړي او په جزمي او وچو نصوصو واوړي، نو هلته وسیله دغایې په نسبت زیات تبارزمي. هدف ته د رسیدو له پاره باید له وسیلې څخه کار واخیستل شي. هدف او وسیله یو له بله نه بېلیږي، خو دا خبرې ماناموانه ده چې که هدف بنه و، وسیله به هم بنه وي. له بده مرغه کله کله د ډېر بنه هدف له پاره له ډېرې بدې وسیلې څخه کار اخیستل شوی دی او په نتیجه کې یې د هدف بنه والي ته هم د پوښتنې نښه ایښودل شوې ده. زه په دې موضوع بحث نه کوم چې آیا د هدف بنه والی د وسیلې بد والی تبرئه کولی شي که نه؟ اما په دې خبره

ضرور بحث کوم چې : که هدف پخپله هدف وګرځي، نو په دې کې به چاته څه تاوان ورسېږي ؟!

په دې کې شک نشته چې ادب دېوې منګوړې ، احساس یا ارمان د بیانولو ذریعه ده . په دې صورت کې ادب د بیان طرز یا شکل دی . دلته نو بیا دا پوښتنه داولاړېږي چې ادب کومه خاصه موضوع یا محتوا هم لري که نه؟ ځینې وایي چې ادب کومه ټاکلې موضوع یا محتوا نه لري . که دا خبره سمه وي ، نو آیا موږ کولی شو چې د ریاضي فرمول ، د فزیک یو قانون یا د دولت بنسټ کلون پلان د شعر په ژبه شرح کړو؟

ځینې نور وایي چې د ادب موضوع انسان دی ، خو دا باید هېره نه کړو چې انترپولوجي ، تاریخ ، ټولنپوهنه ، اروا پوهنه ، فیزیولوجي ، اناتومي او ځینې نورې پوهنې هم پر انسان بحث کوي . که موږ خپل کلاسیک ادب ته رجوع وکړو نو ګل او بلبل ، شمع او پتنګ ، له انسان نه مافوق او ماتحت شیان او موجودات ، غرونه ، رغونه او داسې نور هم پکې راغلي دي . په دې اساس ، ادب کومه خاصه موضوع نه لري ، بلکه په هره موضوع باندې غږېدای شي . له همدې امله یو زیات شمېر ادبپوهان په دې عقیده دي چې ادب په سبکلیو او احساس پاروونکو الفاظو کې دیو مطلب بیان ته ویل کېږي ، د ادب له پاره مطلب (موضوع) اختیاري بڼه لري ، لیکن خوندور او احساس پاروونکي الفاظ یې لازمي شرط دی او په حقیقت کې همدغه د بیان څرنګوالی (شکل ) د ادب ذاتي او لازمي توک دی . ادبي اثر خپل ارزښت نه له منطق څخه اخلي ، نه له اخلاقو ، نه له علم ، نه له فلسفې ، نه له ایډیالوجۍ څخه ، بلکې له هنري شکل څخه یې اخلي .

شعر چې د ادب يو مهم توک دی ، هغو مره عقلاني نه دی . لکه چې غير عقلاني دی . استعاري، تشبيه کانې ، تصوير، تخييل ، مبالغه او په مجموع کې ابداع (يا تخليق) شعر او ادب تر له عيني واقعيت څخه دليرې کېدو له پاره خدمت کوي او که يو ، تني مختصات له شعر او ادب څخه نفي کړو وچ او ساړه واقعيتونه به پاتې شي چې بنايي د ساينس يو ه پاملرنه ځانته را واړوي .

ځيني کسان پر هغو ادبي آثارو باندې سختې حملې کوي چې تعهد ته غاړه نه ږدي . د دې خبرې مانا داده چې شاعر يا ليکوال بايد خپل آثار د يوې ټاکلې ايډيالوجۍ تابع وګرځوي او د هغې د تبليغ او ترويج له پاره مټې را ونغاړي . داغو ښتنه اوسنۍ نه ده . پخوانو پاچهانو، فيو ډالانو، د کليسا لارښوونکو د مذهبي فرقو پيشوايانو او د دول دول سياسي ليډرانو همېشه شاعر او ليکوال ته دستور ورکړی دی چې د دوی د تمايلاتو پير وي وکړي . د وی ټولو له شاعر او ليکوال نه د تعهد غوښتنه کړې ده او د هنر آزادۍ ته يې په سپکه سترګه کتلي دي . په دې اساس پخپله «تعهد» د همېشه له پاره مثبت ارزښت نه لري کېږي . البته دا يوازې اديب نه دی ، بلکه له ساينس پوه څخه هم هرکله د تعهد غوښتنه شوې ده . له دې امله دانشو ويلای چې هر تعهد ښه دی يا هر تعهد بد . اما که شاعر، ليکوال يا هنرمند آزادوي نو څه ؟ بنايي ځينې شاعرانو او ليکوالو به زيان رسوونکي آثار هم ايجاد کړي وي ، خو د هغو ضرر به هر صورت له خرافاتي مفکورو ، تفوق غوښتونکو سياستونو او فرقه يي تعصباتو څخه لږ دی . شاعر او ليکو ال غواړي چې ټول خوشحاله وسا تي او په ژوندکې خوند پيدا کړي

هرڅو مره چې د شاعر او ليکوال مخاطب کسان زيات وي او دده له آثارو څخه ټول يا تقريباً ټول خلک خوندوا خلي، نو به دې کې د چا څه تاوان دی؟ که شاعر او ليکوال يوازې د محدودې ډلې، فرقې، قشر، يا طبقې په ګټه يا نور و په ضد څه ووايي ، نو دده ايجا ديات به د فصل په مد لېد و سره مراوي شي . فصلي ادبيات او دوړځې ادبيات د کدو ډبوټو په شان ژر وده کوي او د چنار سرته ختږي ، خو د فصل په اوښتو سره کدو مراوي کېږي او چنار پاتې کېږي .

هغه ادبيات چې د وسيلې له مقام نه د هدف مقام ته پورته شي ، د پراخ هيومانيزم له پاره خدمت وکړي ، ژوند ته رنګينې او تنوع و بخښي . د فصل له اوښتو سره له مينځه نه ځي . پا سيفېزم (سوله خوښونه) د طبيعت ښکلا ، انساني مينه ، خوشبيني ، په راتلونکی باور او داسې نور ارزښتونه عام انساني ارزښتونه دي . هر شاعر او ليکوال چې دغه ارزښتونه په خپلو آثاروکې را ونغاړي په تاريخ کې به يې نوم ثبت شي .

شاعر او ليکوال په هرصورت متعهد دی ، حتی په هغه وخت کې چې يوازې خپل عندي تاثرات څرګندوي . البته ددې امکان شته چې اديب اش دې کله کله زيان رسوونکی افکار هم خپاره کړي . ټولنه حق لري چې دغه ډول آثار سانسور کړي . مګر له ټولنې څخه ولې دا پوښتنه نه کېږي چې هغوی په ساينس پوه باندې ولې قيودونه وضع کوي . د اورانوونکې وسلې چې نړه يې په لړزه را وستې ده د ساينس پوهانو د کار محصول ده . هغوی څوک نه غندي ، ځکه چې د دولتونو ته خدمت کوي ، مګر که شاعر د لوږې او قحطی په ...

کې دګل او بلبل سندرې وايي ، نو د ټولو مخ ده ته وراوړي او ورته وايي : کاکا ، ته نه پوهېږې چې د اوړو نرخ په څو دی؟ آيا داله ټولنې سره جفا نه ده چې خلک اوږو او غوړيو ته په ليکه ولاړ دی او ته دزلفو او سنبل په ستاينه کې بابولالې وايې ؟

هو شاعر بايد دخلکو د زړونو ترجماني وکړي . هغه له هر ځايه نزيات له عواطفو سره سروکار لري . کېداى شي چې کوم شاعر دې د اوړو ، تېلو او غوړيو په مدح کې ترانې هم ووايي . ليکن دا دشعر قلمرو نه دی . تاريخ او عنعنې شاعر ته ځينې موازين د ميراث په توګه پرايښي دي .

د داستان ليکونکي کار د شاعر له هغه سره يو څه توپير لري . داستان ليکونکی د خپل چاپېرياله انځورګر (نقاش) دی . د انځورګر کار عکاسي نه ده ، بلکې نقاشي ده . داستان ليکونکی دقشرې و اقعيتونو پرځای د شاوخوا پېښو ماهيت انځوروي . دده د ليکنې په پس منظر کې دپېښو علتونه په هنري پېرايه کې څرګندېږي . هغه وعظ نه کوي ، دستور نه ورکوي ، منطق او فلسفه نه بيانوي خو دده له بيان نه لوستونکي خپلې تجربې غني کوي . دپېښو له ژورو سره اشناکېږي ، دپېښو په تسلسل کې منطق وينې ، عواطف يې راوپښېږي او نړۍ ليد ته يې پراختيا وربخښي .

کېداى شي چې داستان ليکونکی د يو ادبي ايډيالست (ارمان خوښونکي) په توګه له او سنيو ترخو واقعيتونو څخه د يو ايډيال غېږې ته پناه يوسي . ادبي کره کتونکي ديو علمي تحليل په ترڅ کې کولی شي چې له د غسې ارماني ليکنو څخه د وخت نبض او ټولنيزې ستونزې

تشخیص کړي . انساني ټولنه دبې ناپېژندل شوي اړخونه هم لري .
حتمي نه ده چې لیکوال د همېشه لپاره ټیپیک کرکټر شرح کړي . که
په ټولنه ټیپیک شخصیتونه شته نو غیر ټیپیک شخصیتونه هم شته .
ادب باید د ټولنې ټول اړخونه په پام کې ونیسي . دیوې واحدې او
کلیشه یي نسخې استعمال د ادب له غني کولو سره مرسته نه کوي .
د ادب ښکلا په تنوع او رنګینۍ ښایسته ده . تخلیق او ابداع د نوښتونو
کوي چې کله کله باید پخواني نورمونه مات شي . په نوښت کې ښکلا
باید د بخښنې او اغماض له لیارې د بشپړتیا خوا ته ولاړه شي .
دې یا دونو په نتیجه کې غو اړم دا ووایم که ادبي آثار
یوازې د اخلاقي فساد د رواجولو په نیامت نه دي ایجاد شوي ، نو
ادبي کره کتونکي ته نه ښايي چې د ټولو په لګولو سره معنوي له تهدید او
ترټنې سره مخامخ کړي . ادبي تخلیق له هرڅه زیات آزادۍ ته
اړتیا لري .

# شاعر د شاعر په ګوته

شاعر یوازې شاعر نه دی، څو کله چې د ادب د تاریخ په هینداره کې د ده څېره کوره شي، نو هلته د ده د شخصیت له شعر سره پیوستون لري. شاعر پېژندنه د شعر پېژندنې په شان نه ده خو د دواړو ترمینځ خلیج نشته. کله چې شاعر د «فنا في الشعر» مقام ته ورسېږي، هلته شعر او شاعر سره یو شي، د شعر پېژندنې او شاعر پېژندنې توپیر ورته له منځه ولاړ شي. څوک چې غواړي شاعر ته مستقل شخصیت ورکړي، نو له ځانه ورته افسانه جوړوي او یا د شاعر د ژوند هغه ځنګونه مطالعه کوي چې غیر شاعرانه دي.

د شاعر پېژندنې مضمون دلیکوال له هدف څخه رنګ اخلي. په حقیقت کې د شاعر شخصیت د دې لپاره څېړل کېږي چې د هغه شعر ښه وپېژندل شي. په دې صورت کې، یعنې د شاعر د ژوند تر څېړلو

وروسته ، اسطورې او سمبولونه روح پیدا کوي ، یوحرکت یا یوشی تمثیلوي ، یوه عاطفي او هنري تجربه او پېښه بیانوي ، او د ظواهرو تر شا مستتر باطني حالات له تیارې څخه رڼا ته راوزي .

لیکن یوڅو « شاعران » شاعران نه دي ، څیني له وزن او قافیې څخه یو اسکلیټ تیاروي ، څیني بدن انځوروي ، څیني انځور په حرکت راولي او څیني همدغه حرکت ته معنا او مفهوم وروښندي او د همیشه توب تاپه وربانندي لګوي . په دې ترڅ کې د دغو شاعرانو دلې ته یو مست لېونی شاعر ورګډېږي ، هغوی یوڅو په جذبه راولي ، طغیان ته یې لمسوي ، لېونی شاعر د ویلو لپاره څه لري ، خو د ده خبرې عادي نه دي ، خوږې دي ، خو بې مفهومه غوندې ښکاري . هو ښیاران شاعران غواړي هغه تجرید کړي ، ځکه چې هغه « دورځې په نرخ ډوډۍ نه خوري » د رسم او رواج چوکاټ ماتوي او د عصیان جنډه پورته کوي .

که تاکل شوې وي چې د شاعر پر فکري مکتب باندې قضاوت وشي ، نو شاعر باید د خپلو مجموعو په مجموع کې ولټول شي . شاعر د ساینس پوه او یا فیلسوف په شان واقعیتونه په میتودیک او سیستماتیک ډول نه بیانوي . ( تضاد ) د شعر صنعت دی او شاعر کله کله د طنز په ژبه منفي تر - مثبت وایي . شاعر مبالغه کوي ، فانتېزي وایي ، له اسطورو او سمبولو سره سروکار لري .

شعر د تخیل او عاطفې بچی دی ، خو ساینس د بر سختګیرۍ

په ساینس کې مبالغه او متضادې خبرې دیوه تېسس اعتبار او صحت ته زیان رسوي . هنر په نښکلا او عواطفو پسې گرځي او ساینس د طبیعت قوانین پلټي . یوه مفکوره هغه وخت شعر ته لاره پیداکوي چې شاعرانه شوې وي. کېدای شي شعر افسانه وي ، فانتېزي وي ، خو هرڅه چې وي باید ښکلی او هُنري وي.
دشعر الفاظ چارج شوي وي ، په داسې حال کې چې دساینس الفاظ یو ښېطرفه مدلول په ښنه کوي .

لیکن مونږ دشاعر په باره کې خبرې کولې او هغه هم ددې لپاره چې دی شعر وایی . کېدای شي ! چې شاعر له خپل شعر نه پردی وي . کېدای شي چې شاعر له خپل ځان نه هم پردی وي، دښه شاعر معنا دانه ده چې خبرې یې علمي یا کمزورې وي، بلکه ښه شاعر هغه دی چې خبرې یې خوند ورې وي . ټول خوندور شیان حتمي نه ده چې گټه ولري . شعر زیان رسولی شي ، حتی ساینس له هغه نه زیات زیان رسولی شي ، لیکن شعر هُنر دی او هُنر لکه ساینس یو حیاتي ضرورت دی . هُنر له واقعیت سره دومره اړه نه لري ، لکه څومره چې یې له ارزښت سره لري . بې هُنره ژوند بېخونده او بې ارزښته دی .

زه فکر کوم مستعهد نقادان به ددې ښولالو په لوستلو ډېر زیات پرېشان شوي وي . البته مونږ هغه شاعران نه شو هېرولی چې دمتعهد و شاعرانو په نامه یاد ېږي . که دهغوی شعرونه په هُنري لحاظ کمزوري او نیمگړي هم وي ، ډېره پروا نه لري ، ځکه چې شعر دهغوی لپاره یوه وسیله ده .

د «متعهد شاعر» اصطلاح د سیاست پان انو د لاس آله ګرځېدلې ده. هغوی غواړي چې له شاعر نه «پنډک بردار» جوړ کړي، دیوه ګوند یا یوې فرقې ځلم تري جوړ کړي. سره شیطان د «تعهد» له اصطلاح څخه متروکه جوړه کړې وه چې د شاعرانو دکنټرول لپاره به یې تري کار اخیست. یوازې دا نه، بلکه «متعهد شاعر» مکلف وي چې له پلان سره سم په او وندکې یو یا دوه شعرونه جوړ کړي او هغه هم باید د ورځنۍ مصلحت تابع وي. کېدای شي هر ګوند او هره فرقه له ځانه سره متعهد شاعران هم ولري. لیکن رښتیني او اصیل شاعر د ټول بشریت سره تړون او مینه لري. هغه له صوفي سره دومره توپیر لري چې صوفي دنیا پرېږدي او زمونږ شاعر یې ترخپلې وسې نه پرېږدي، د دې لپاره یې نه پرېږدي چې هغه د ټولو لپاره ښکلې کړي. ښایي شاعر ونشي کولی چې دنیا ښکلې کړي خو هغه کولی شي دنیا ښکلې وښیي او څوک چې دنیا د ده په شعر کې ګوري هغه د او سېدو وړ وګڼي. شاعر مونږ ته وایي: ژوند په کولو ارزي. د اُفق ښکلا، د سپوږمۍ پلوشې، د ونې نوازش، د ګلانو عطر، د رباب نغمې، د آبشار زمزمې، د مینې جادو، د صراحي قلقل، د بلبلانو سندرې او په سلګونو نورې پدیدې زمونږ ژوند ښکلی کولی شي.

شعر له ښکلا او عاطفې پرته نور څه لري؟ هیڅ. آیا همدغه کفایت نه کوي؟

# منثور شعر او منظوم نثر

# د ادبي اصطلاحاتو مسأله

کله چې ما د راحت زاخیلي ده «سين چپې چپې، اباسين چپې چپې» لنډه کیسه ولوستله د هغې له شاعرانه تناسبه څخه دومره متأثر شوم چې له اکثرو شعرونو څخه مې دومره خوند نه دی اخیستی په دې وخت کې مې د لوی استاد خبره په نظر کې وګرځېده چې د پښتو د متفکر او نقاد شاعر ګل پاچا الفت د نثر په باب یې کړې وه. لوی استاد ویلي وو چې د الفت له شعر څخه یې د ده نثر زیات خوښېږي. له دغې یادونې څخه د لوی استاد مقصد دا و چې د الفت نثر هم د ده د شعر په شان ارزښت لري. دا خبره د راحت زاخیلي، الفت، حبیبي، شپون، ترې او نورو شاعرانو په باب هم کولای شو چې د هغوی هنري نثرونه د برخه د هغوی له شعرونو نه زیات خوندور دي. زه په خپله د شپون له طنازنثر (یعنې له طنزناک نثر) څخه د هغه د شعر په نسبت

زیاتې خوندا خلم که څه هم دهغه ځینې شعرونه د ډېرو ښو شاعرانو له شعرونو سره په لومړي کتار کې دریږي. د منشي احمدجان د (آدم درخانۍ) نثر پخپله ښکلا کې د درخانۍ له ښایست نه کم نه دی. دې (روه) په سیمه کې ډېر نثرلیکونکي شته چې د هغوی د لیکنو خواږه او پاسته الفاظ، مینځلې ژبه، لطیف خیال، هنري تصویر، او قصه ییز سبک نه ورونکې شاعرانه رنګ لري.

اوس پوښتنه دا ده چې د غسې خوندور او ښکلي نثر و نه چې د هنر په تله کې له اکثرو شعرونو څخه زیات وزن لري، مګر موزون نه دي، په څه نامه یاد کړو؟ زما په یوه دلته د سیستم مسأله رامنځ ته کېږي.

ادبي اصطلاحات هم تر یوې اندازې د بدیعي ادب په شان دانسان ذوق تابع پاتې شوي دي. داسې کسان شته چې په شعر کې لې حکمت او فلسفي مفکورې خوښېږي، ځینې په شعر کې له پند او وعظ څخه خوند اخلي، څوک حماسه خوښوي، او ځینې هم مینه، تصویر او داسې نور. که موږ بدیعي ادب د هنر توک بولو، نوبیا هلته د یوه اثر هنري ارزښت د معیار په توګه ګڼل کېږي. په دې صورت کې د سرمحقق زلمي هېوادمل دا خبره اعتبار لري چې وايي: «یو منظوم اثر چې شعریت ونه لري په ادبیاتو کې د مطالعې ځای نه لري.» دلته . د سیستم موضوع مطرح ده، په دې ډول: بدیعي ادب (چې له اخلاقي ادب سره توپیر لري) د هنر له دوو څخه یو ډول دی. په دې اساس یوازې هغه ژبنی اثر چې هنري ارزښت ولري، ادبي اثر ګڼل کېږي. د همدې معیار له مخې، موږ ځینو نثرونو ته چې هنري ارزښت

لري لیکن د آزاد شعر په اندازه آهنګ نه لري (منثور شعر) ویلای شو.
په همدې ترتیب، هغه نظمونه چې وزن او قافیه لري، مګر شعریت
نه لري د (منظوم نثر) په نامه یادولی شو.

ځینې کسان وایي: «لا المناقشة فی الاصطلاحات» دا خبره خو
په ساینس کې هیڅ جوان نه لري. په ادبیاتو او ټولنیزو پوهنو کې هم
د اصطلاحاتو یووالی مطلوب کار کېدل کېږي او لازمه ده چې د سیستم په
چوکاټ کې د غه کار سرته ورسېږي. که چیرې په ټولنیزو پوهنو
او ادبیاتو کې یوه اصطلاح په خاص مفهوم بکار وی نو باید چې څېړونکی
د څېړنې له پیل کولو څخه دمخه خپله اصطلاح په دقیق ډول تعریف او تحدید
کړي. یو ځلي چې اصطلاح تعریف شوه باید د څېړنې تر پایه پورې
په همافه مفهوم استعمال شي او په دې توګه باید د مغالطې او
سفسطې مخه ونیوله شي.

دلته د ادب او پوهنې پوښتنه هم راولاړېږي. که په ساده
ژبه وو ایو ادب هنر دی مګر ادبپوهنه علم دی. ځینې کسان دغه
موضوع په دې ډول بیانوي: «ادبیات دوې څانګې لري: یوې ته یې
تخلیقي ادب وایي او بلې ته تحقیقي ادب. په منطقي لحاظ یعنې د
سیستم له مخې، دغه تصنیف اصولي نه دی، ځکه په (تحقیقي ادب) کې (ادب)
اصلي کلمه ده او (تحقیقي) یې توصیف دی. په داسې حال کې چې
(تحقیقي ادب) اصلاً علم دی (یا په واقعیت کې د علم کېدلو له پاره یو
کوښښ دی.) نو (ادب) ورته نشو ویلای. اوسنی تمایل دا دی چې
د (تحقیقي ادب) پرځای د (ادبپوهنې، ادب پېژندنې، ادبي څېړنې)
اصطلاحات استعمال شي.

ویل کېږي چې ادبپوهنه درې عمده څانګې لري: ادبي تیوري، ادبي تاریخ، ادبي نقد (کره کتنه). د دې ترڅنګ د ادبي مکتبونو (ادبي میتودونو) سبک پېژندنې مسائل هم په څانګې توګه څېړل کېږي.

ادبي تیوري د ادب د منشاء، ماهیت، انکشافي یون، ارزښت او غایې (هدف) په باره کې هر اړخیزه څېړنه کوي. ادبي تیوري ساینس نه دی، بلکه د لیکوال له فلسفي دریځ او نړۍ لید (جهانبیني) څخه را اقتباس کېږي. څرنګه چې د اکثرو لیکوالو فلسفي دریځونه یو تر بله توپیر لري، نو په ادبي تیورۍ کې د نظریاتو یووالی نه لیدل کېږي، په داسې حال کې چې په ساینس کې د پوهانو تر منځ عمومي موافقه (consensus) اساسي شرط ګڼل کېږي.

ادبي تاریخ له ادبي تذکرې سره توپیر لري. په ادبي تاریخ کې لیکونکی د ټاکلي معیار پر بنسټ د یوې ادبي حوزې ټولنیز، اقتصادي، سیاسي او کلتوري عوامل چې پر ادبي جریان باندې یې اغېزه درلودلې وي، د هغې تاثیر په تناسب شرح کوي او بیا د ادبي نهضت یا جریان ټیپیک او ممتاز استازي معرفي کوي او استثنایي حالات او اشخاص هم له نظره نه غورځوي.

ادبي کره کتنه د یوه ادبي اثر پر هنري ارزښت باندې بېطرفانه بحث کوي، ښه او بد اړخونه یې څېړي او بیا بیا په دې وسیله په لوستونکي کې ایستیتکي ذوق راوپاروي او د ښکلي او بدرنګ د تمیز معیارونه ورته بیان کړي. ادبي کره کتنه په بېرته پاتې ټولنو کې معمولاً ښه نتیجه نه ورکوي. ځکه په داسې ټولنو کې یوسړی یا سپین چړګ دی یا تور چړګ دی، برګ چرګان پکې نشته. (ویل کېږي چې د یوه سیاسي ګوند د یوه فراکسیون مشر، خو ځلې سپین چرګ شو او په خو ځلې تور چرګ شو

همدومره کافي وه چې د مقابل فراکسیون مشر اعلان وکړي: پلانی له نن ورځې وروسته سپین چرګ شو ، نور به خوا تورو بیګه درلوده او نور اوس لري .)

که ادبپوهنه ( یاعلم تروله تېروتنې ) وي ، نو په علم کې شخصي حب او بغض ځای نه لري . په مجموع کې د ادبپوهنې او په خاص ډول د کره کتنې لانجې له دې څخه را ولاړېږي چې ادبي آثار معمولاً د سم او ناسم ( صحیح او غلط ) په تله نه تلل کېږي ( ځکه دا د ساینس تله ده ) بلکه د وی د انفرادي ذوق په معیار ارزیابي کېږي او لا تر اوسه د ارزښتونو د تللو له پاره د داسې وړ او منل شوې تله نه ده جوړه شوې . بنا یې دا به لویه بدبختي وي که ساینس د هنر قلمرو . تخیل کنترول لاندې راولي او هنري معیارونه خپل ځای علمي معیارونو ته خوشې کړي . هنري تخیل انسان ته موقع ورکوي چې له ورځ ، ترخه او ساړه ژوند څخه د څو شیبو له پاره ځان ګوښه کړي او د هنر په نړۍ کې مشغول پاتې شي .

# د شعر ذاتي او بهرني معيارونه

د یونان نامتو فیلسوف (سوکرات Socrates) دې خبرې ته اریان کېږه و چې ځینې ساده کسان څنګه نوې وېډنکې او ښکلي شعرونه ویلای شي؟ ده ولیدل چې دا دوارو نه سوک جوړېږي نو کمان یې وکړ چې دا ښکلي شعرونه د مغزو نه دي، بلکه د هنر رب النوع خپل شعرونه د دوی له خولو راوباسي. په دې اساس صوسټر په خلکو کې دا خبره مشهوره شوه چې شعر د عقل په زور نه جوړېږي بلکه هغه یو ډول الهام دی.

(سوکرات) په شعر کې بهرني معیار ته ارزښت ورکاوه.

دا قصه بې بنیاده نه ده چې وایي: (سوکرات) هو ښیار شاعران د اتن له ښار نه وشړل، لیکن په دې تفاوت چې ده د شاعر غاړې ته د ګلونو امیل ورا چاوه او په درناوي سره یې رخصت ور کاوه. هغه چې د یونان تر ټولو هوښیار سړی

کمل کېده. د شعر او شاعر په اهمیت پوهېده. ده د (هومر) پر شعر انتقاد کاوه چې هغه د پر ښکلی او خوندور دی، لیکن د ځوانانو اخلاق خرابوي، ځکه دده په شعر کې ارباب النواع دروغ وايي، جنګونه کوي، غلا کوي او له ډګره نه کار اخلي. که ځوانان د هغو لاره تعقیب کړي نو لنیز ژوند به له فساده ډک شي.

(ارسطو) که څه هم د صوري منطق واضع او د سیاست پوهنې تیوریسن دی، خو هغه شعر د منطق او سیاست په خدمت په کار نه اچوی، بلکه د هوا طفو د تلطیف او روحي تسکین (Catharsis) وسیله یې ګڼي. ارسطو د شعر ذاتي ارزښت ته پاملرنه کوله.
د شعر په باب دده (تقلید) نظریه څینو ادبپوهانو د بیا جوړونې (باز آفریني) نظریه ګڼلې ده. د ساینس او هنر (په تېره د شعر) تو پیر له همدې ځایه پیلیږي. ساینس کټ مټ واقعیتونه بیانوي او تجربې ته عندي نظر نه ورکوي په داسې حال کې چې هنر له واقعیتونو (Facts) څخه یو خپل برداشت (انطباع) یو اضافي کار هم کوي او یا دیوچا خبره «هنر له واقعیت څخه دوه وارې لېرې کېږي».

کله کله داسې هم پېښیږي چې هنر هیڅ نه وايي، لکه د موسیقۍ نغمه، د شفق تابلو، د وینوس مجسمه او نور.

دغنچې په څېر به سل ژبو خاموش یم
لکه بوی هسې په پټه خوله ګویا یم

(رحمان بابا)

د شعر پېژندنې او ادبي نقد (کرټکېنې) معیارونه د

(سوکرات) او (ارسطو) له نظریو څخه نشأت کوي او نیا تره

د (اپلاتوني نقد) او (ارسطويي نقد) په نوم تو یادیږي.

(اپلاتوني نقد) څکه ورته وایي چې د (سوکرات) نظر اپلاتون-

(platon) له خوا بیان شوی دی. (اپلاتوني کره کتنه) په شعر کې

اخلاقي تعهد او کټور توب ته ارزښت ورکوي خو د شعر ذاتي

معیارونه هم په پام کې نیسي. (ارسطويي کره کتنه) د شعر ذاتي

معیار اساس ګڼي او بهرني معیارونه ورته اضافي ښکاري. که څه

هم (ارسطو) بنايي داسې خبرې نه وي کړې خو دا نظریه د دله

فلسفې سره اړخ لګوي، څکه چې د هغه په نظر ښه علم هغه دی چې

مادي ګټه ونه لري. د آزادو هنرونو اصطلاح هم له همدې

ځایه راپیدا شوې وه. (ارسطو) به ویل چې غلامان باید کار وکړي

او ګټه راوړي آزاد خلک باید فکر وکړي او ځانونه په آزادو هنرونو

مشغول کړي. د هغه د ول هنرونه د ګټې لپاره نه دي. د

(رومانتیزم) پلویانو په پوره زړه ورتوب د «هنر د هنر لپاره»

نظریه وړاندې کړه او د هنر ذاتي ارزښت یې د هنر له

بهرني ارزښت څخه غوره وګاڼه. د دوی په نظر هنر باید

د ښکلا ښکارندوی وي. ښکلا باید په ساده ډول تعبیر نشي.

کېدای شي د یو بلړنګه سړي انځور (تصویر) ښکلی وي،

یعنې په ظریفانه او هنري توګه ترسیم شوی وي. د اسې هم

ویل کېدای شي چې هنرمندانه تقلید پخپله هنر دی. کېدای

شي چې هغه شی (یا څوک) بد یا بدرنګه وي، خو د تقلید

په برکت هنري ارزښت پیدا کړي.

(کانت) د رومانتیزم ) د شعار لپاره یوه تیوري هم وړاندې
کړه . د ده په نظر د انسان په جوړښت کې د ښه او بد د پېژندلو
لپاره قاضي شته چې هغه وجدان دی او د ښکلي او بد رنګ
قاضي د ذوق په نامه یادېږي . ښکلا خوښونه پخپله یوه غریزه
ده چې د کټې او تملیک له غریزې نه جلا ده ؛ هنر د ښکلا خوښونې
له غریزې سره اړه لري . په دې حساب هنر پخپله غایه
ده او که څوک یې د وسیلې په توګه استعمالوي هغه بېله خبره ده .
بنیادي داپوښتنه مطرح شي چې د شعر د خپلواکه او ذاتي
ارزښت لپاره ولې له دومره تیکدارانو څخه کار اخیستل کېږي ؟ ددې
پوښتنې یو ساده ځواب دادی چې شعر باید له استبداد ، ړانده تعبد ،
جزمي انکار ، دیکتات او کلیشه یي شعارونو له مړینیتوب څخه
وژغورل شي او د سیاسي تاجرانو د لاس آله ونه ګرځي . شعر
هغه وخت د انسان د هیلو او آرزوګانو ترجماني کولای شي چې
د ابتکار او نوښت آزادي ولري . شعر د وجدان غږ دی . شعر
هلته تبارز کولای شي چې د وجدان په آزادۍ پابندي نه وي .
شعر د مینې او عاطفې د څرګندولو لار ده ، باید د کرکې او بدبینې
د خپرولو او د جوړ او قتل د توجیه کولو وسیله ونه ګرځي . هغه شعر
چې د خلکو لپاره نه وي پاینت نه لري ، پخپله مري . هغه شعر چې
د ورځې د سیاسي مصلحت لپاره د جابرانو په حکم لیکل شوی وي
ډېر لږ ژوند کولای شي ، خو هغه شعر چې د بشریت ل
ویل شوی وي ژوندی پاتې کېږي .

# AN

# INTRODUCTION TO POETRY

## (An anthology of Poetry)




**By**

**Candidate Academician Mohd. Siddiq Rohi**

**1996**